## د کتاب ځانګړنې:

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | لېونتوب |
| وېناوال: | اکمل لېونے |
| اول چاپ: | ۲۰۰۵ء |
| دوېم چاپ: | ۲۰۱۰ء |
| چاپ ځائې: | زرپاڼه پرنټرز پېښور |
| کمپوزر: | رحمت ديوان (0345-7030719) |
| چاپ شمېر: | زر ټوکه (۱۰۰۰) |
| بيعه: | 100 روپۍ |

**زرپاڼه پرنټرز، پبلشرز پېښور**

يونيورسټي روډ فواد پلازه دوېم منزل

فون: (091-5841372) ايمېل: (zarpanra@yahoo.com)

# ټرون

د خپل هغه لېونتوب په نوم چې ما د پښتو دپاره د پښتونخوا په غرونو، مېدانونو، کلو، حجرو او لارو کوڅو کښې اوس هم په دې هیله ګرځوي چې:

څانګه به ټنګ سبا کښې ګل شي
ما يې په سر کښې غوټې لیدلې دینه

# خپلې خبرې

زما دا د شاعرۍ دریم کتاب دے چې لېونتوب نوم مې ورته خوښ کړے وو او د مردان دوه وو مشهورو استادانو شاعرانو شمس القمر اندیش صیب او ډاکټر اسرار صیب پرې راله دوه کاله مخکښې لیکل هم کړي دي او کمپوزنګ یې راته د دانش خپرندویې ټولنې مالک ګران ملګري اسدالله ساپي کړے وو چې یو کال د هغه سره پروت وو زما حال ټولو ملګرو شاعرانو ته معلوم دے چې د پیسې درک راسره نشته، چې په پښتو مئین چرته پیدا شي او مالي مرسته راسره وکړي نو هله زهٔ کتاب چاپ کړم.
بل ملګري شاعر هم د لېونتوب په نوم کتاب چاپ کړو چې د کمپوزنګ او چاپ کولو کار یې ټول اسدالله ساپي ته حواله کړے وو، هغه ورته اووې، چې لېونتوب خو د اکمل لېوني کتاب دے او مونږ سره پروت دے، چاپ ته تیار دے. هغه شاعر ملګري ما سره په خپله میلاو شو او راته یې ووې، چې ته ورله لېونے لېونے نوم کېږده ما ورته وې چې وي په ستا خپله شاعري ده او زما خپله او اخیستل او بیا لوستل یې د خلقو کار دے.
نو دادے زما لېونتوب، چې په پښتو مئینو پښتنو ته یې وړاندې کوم.

ستاسو اکمل لېونے.

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com


# اکمل لېونۍ

اکمل لېونے د خپلې مورنۍ پښتو د شعر په دنيا کې يو ياد او نوموړے نوم دے. هغه د پښتو د ادبي محفلونو، هم ښکلا ده او رڼا او ځلا. هم ضرورت دے او هم زېب او زينت، هغه د خپل ځان او جهان خپل ژوند او خپل فن سره اړه لرونکي مقصدونه د خپل شعر د ګلونو، رنګونو او ګل زارونو په لار، د خپلو مئينو، خپلو لوستونکو او د خوږې پښتو د ويونکو زړونو ته د محبت د ښکلي او خوندورې ډالۍ په توګه رسوی. د فارسۍ ژبې لويې شاعر حافظ شيرازي په خپل يو شعر کې د خپل ځان په باره کې وايي چې:

"ما چې د خدايه څۀ موندلي دي، نو د خدای فضل دے او زۀ د خدای ډېر ډېر شکر ګذار يم، چې هغه مې د خپلو متو په زور ګټلي دي".

او زه وايم که دا خبره مونږ د اکمل لېوني په حقله څۀ قدرې په پام او خيال سره وکړو. نو ډېره بې ځايه به نۀ وی، د خدای د لوري پېرزو شوې شاعري، هغه په رښتيا چې يوه بې بها پنګه ګڼلې ده او د زړۀ د اخلاصه يې د هغې قدر او قيمت منلے دے.

هغه بس دغه هومره نۀ دي کړي، چې خپل خيال او جذبه يې د شعر د هنر پۀ وزرو کاغذ ته رسولي دي. هغه د خپل اواز پۀ ساز پۀ خپل شعر د هر اوريدونکي زړۀ خوږ کړے دے.
هر چاته د خپل ژوند، وخت او حالاتو د غوښتنو پۀ لار رسيدلے دے. د کتابونو ګاڼلي پۀ غاړه هر ادبي مجلس او محفل ته تلے دے او هر چاله يې د پښتو د کتاب د اخيستو بلنه ورکړې ده. دغه شان اکمل لېونے پۀ دې کار کې سيال او سارے نه لري، چې کتاب يې د يرش روپيۍ من تللو ته نه دے پريښے "تورتم" د هغۀ د شعورنو وړومبنے کتاب وو، چې هر ځل د زرو کتابونو پۀ شمېر شپږ ځله چاپ شوے او خرڅ شوے دے او بيا "چپاوۀنه" د هغۀ دويم کتاب دوه ځله چاپ شوے دے او هر ځل زر کتابونه پۀ کومه مينه، جوش، جذبه، احساس، اخلاص او محنت چې هغه شعر ليکي هم هغه شان د خپل شعر، خپلې خبرې او خپل پيغام رسولو کار ترسره کوي.
او دا هم د هغۀ د برياليو هلو ځلو او شواخون برکت دے چې دادے هغه يو ځل بيا ستاسو په وړاندې د خپلې شاعرۍ دريم کتاب پۀ لاس ولاړ دے. د خپل فن او فکر د ښکلا او رڼا سره د خپل ساده بيان او د خپل قلم د زور او توان سره او پۀ هر مضمون کې د خپلې جذبې، خپلې ارادې، خپل تعين او خپل

امید د پلوشو سره مذهب، سیاست، غریبي، ناداري، بې انصافي، ظلم زور، منافقت، دښمنۍ، بد امنۍ، تربګنۍ، ځان ځاني، مینه، ښائست، پښتو، پښتونولي، ښې بدې او د خپلې زمانې سره تړلې نورې ډېرې خبرې د هغه د شعر د دې نوي کتاب د فکر او ذکر توکي دي او د اکمل دپاره د دې هر څه یوه مانا ، یو عرض او یو مقصد دے او هغه دے د خپل قام او وطن ابادي، ښېرازي، خوشحالي، سوکالي او یو داسې ژوند چې د هر لوري د شرافت او سرېتوب غوښتنې پوره کوي او پۀ دې لړ کې چې هغه څۀ وايي د خپل شعر د هنر پۀ اوستکاره ښکلې خوږه او خوندوره ژبه یې د څۀ یرې، ترهې، بې د څه طمعې اسرې، پۀ ډاګه او ډنګ پېیلې وايي. پۀ داسې ډول او داسې انداز سره، چې بنده پخپله حق او حقیقت ته سلامي شي.

اکمل د مردان ضلعې د شموزو کلي اوسېدونکے دے کوم ځايې چې د غرۀ او سمې قدرتي ښائست یو بل سره غاړه غړې دی او هر وخت یو شاعرانه نظر ته سترګې سترګې. اکمل هم د دې ځایه د خپل خیال پۀ نیلي سور د خپل وطن پۀ لر و بر تر لرې لرې ګرځېدلے دے. د خپل وطن او قام دپاره دې و جنت جنت، سپرلي سپرلي ژوند په ارمان او امید.

د اکمل د شعر ژبه روانه، ساده او اسانه ده، نۀ خو يې پۀ مانا او مقصد د پوهېدلو او نه يې پۀ جامه او جوړښت د ګوتې اېښودو ځۀ ځايې شته. هغه د خپل قدرتي پوهې، خپلې مشاهدې، خپل احساس او خپل اخلاص پۀ زور شعر وئيلے دے. د هغه اواز د هغۀ د لوستونکو او اورېدونکو د زړونو تل ته کوزېږي او لکه د سپرلي د سحر د پرخې د هر يو پۀ روح ورېږي.
خداى دې پښتنو له پۀ دې بابله پوهه، پام او توفيق ورکړي چې خپله ژبه ژوندۍ اوساتي او د دې مقصد د ترسره کولو دپاره بس او بس يوه لاره ده او هغه دا چې پښتو دې د تعليم او دفتر ژبه شي، تر څو چې مونږ خپلې مورنۍ ژبې له دغه حق اونۀ ګټو، زمونږ ټولې ادبي هڅې او هلې ځلې به ځايې اونۀ نيسي. بې د خپلې مورنۍ ژبې د خپلولو نه به مونږ پۀ يو داسې لور روان يو چې سر يې د پښتون قام د پېژندګلو او پښتو ژبې پۀ ورکېدو لګي.

**اندېش شمس القمر**
۱۷ اګست ۲۰۰۳ء

# د اکمل لېوني توب

اکمل لېونے په ړومبي ځل ما د مردان په يوه مشاعره کې يو شل کاله به يې کېږي چې لېدلے او اورېدلے وو د څو ټوقو ټقالو نه علاوه يې چې دغلته کوم غزل په خپل مخصوص ترنم کې اورولے وو دا يو شعر يې ماته د هغه وخت نه ياد دے:

کم عقله خلقه تاسو غم او ښادي څه پېژنئ
تياره بې وسو له پړده د ډېرې مۀ بلوئ

د دغه شعر په وجه ورسره زما پېژندګلي پېدا شوه، د دۀ اهميت او د دۀ شعري استعداد راته معلوم شو، بيا چې به په کومه مشاعره کې اکمل لېونے موجود وو نو خوشحاله به ووم چې څه که خېر وي مشاعره به کامیابه او خوند ناکه وي او اورېدونکي به دا نه شي وئيلي چې دا مونږ چاته راغونډ شوي يو.

اکمل لېوني زما نه ډېر مخکښې د مردان شاعرانو پېژندلے او خوښ کړے وو او يوازې د مردان ملګرو څۀ چې اکمل د ميډيا د مدد نه بغير خپل شعر د ترنم د خوږو سره د پښتونخوا ګوټ ګوټ ته رسولے دے او د لکونو پښتنو نه يې دا راخستے دے.

اکمل وائي:

ما د حیا نه پوهه ځان ناپوهه کړے ورته
داسې نور کم خلق پوهېږي څنګ چې زۀ پوهېږم

د دې داخلي شهادت په رڼا کې مونږ وئيلے شو چې دے لېونے نه دے، خپل کور کلے، لاره کوڅه، حجره جمات، خپل پردے، دوست دښمن او خپله ډله ټپله پېژني، دے وائي چې "ما د حیا نه" خو زه وایم چې دۀ له قصده په دې غرض دا تخلص خوښ کړے دے، دې د لېونو په جامه کې ګرځي د خلقو او د چاپېرچل تماشه کوي ګوري چې دا خلق دا د کلو، ښاريو او بازارونو خلق، دا سرمايه دار، جاګيردار، دوکانداران، زمينداران، عالمان، لېډران او د حکومت واکداران او اهلکاران څۀ کوي، دوي په ظاهره څنګه دي او د دوي باطن څنګه دے، دې چې څه ويني ګوري په لفظونو کې د هغې تصويرونه جوړوي اوو دغه د شعر تصويري ائينه خلقو ته مخامخ نيسي چې دا تاسو يئ او دا ستاسو کارونه او دا ستاسو نمونې دي او ورته وائي:

دي ژړا وير ماتونو ته دې خيال دے
دې قتلونو دې مرګونو ته دې خيال دے
انسانان لکه ښاروي پکښې خرڅېږي

دې مېلو دې بازارونو ته دې خيال دے
چې غل بري کړي کوتوال غريب پانسي کړي
د انصاف عدالتونو ته دې خيال دے
اسلام نه اسلام اباد ورپکښې ستائي
دي وعظونو تقريرونو ته دې خيال دے

اکمل لېوني د خلقو شاعر دے، د اولس شاعر دے او د اظهار دپاره يې د اولس اسانه ژبه غوره کړې ده ځکه چې د دۀ مخاطب عام اولس او ټول خلق دي او هغوي ته هم د هغوي په روزمره او محاوره کې نېغه په نېغه خبره کوي، کله په سنجيده انداز، خو زياتره په مزاحيه انداز کې خپل خيال وړاندې کوي، د دۀ مزاح، او طنز مقصدي او تعميري دے، ځکه چې دې د خلقو خيال او پام د هغوي غلطو، کمزورو، کمراهو او منافقتونو ته راګرځوي، د دۀ د نظمونو او غزلونو هم دغه مرکزي موضوع ده، دۀ خپل غمونه هېر کړي او د خلقو غمونه يې خپل کړي دي، دا خبره دے په يو رنګ او کله په بل رنګ کې د خلقو مخې ته ږدي، "ځمه د دې کلي نه" نومې نظم کې يې دغه غم څۀ په دې رنګ ژړلے دے:

نور ورپکښې نه اوسمه ځمه د دې کلي نه
کډه په حيا کې چرته وړمه د دې کلي نه

نور ورپکښې نه اوسمه زړۀ مې ترې موړ شوے دے
ننګ غیرت د خلقو د زړګو نه نچوړ شوے دے
اوس د پښتنو تاریخ هېر شوے دے زوړ شوے دے
څۀ به وایم ښارې ناپرسان ترېنه جوړ شوے دے
زه خو قدرتي له وېرې مرمه د دې کلي نه
کډه په حیا کې چرته وړمه د دې کلي نه

دا چې:

ختم شریفا شو بدمعاشان یې مشري کوي
وینم چې د امن قاتلان یې مشري کوي
نوره مې د خبر نه کېږي طمعه د دې کلي نه
کډه په حیا کې چرته وړمه د دې کلي نه

په ننني وخت کې دا د پښتنو د هر کلي نقشه ده چې اکمل په لفظونو کې راکښلې ده "اوسه پکښې مه"، "غل"، "انصاف" او "حق او باطل" نومې نظمونو کې یې هم غه ژړا ده.

اکمل لېونے یو نظریاتي او قوم پرست شاعر دے، داسې شاعر چې تشې خبرې نۀ کوي قول یې د عمل او عمل یې د قول مطابق دے، د پښتنو د قومي تحریک سره پوخ تړون او کلکه وابستګي لر، ړوند تقلید نۀ کوي، په نورو د تنقید کولو سره د خپلې ډلې د لیډرانو په کمزورو او غلطو هم تنقید کوي، په

ځينو نظمونو لکه "انقلاب"، "پښتو او پښتون"، "چغه" "پښتونخوا" او "د مزدور حال" يې سياسي رنګ زيات غالب دے چې خپله قومي او طبقاتي وابستګي يې پکښې ښکاره کړې ده، په "رښتيا" نومې نظم کې پرې د پتولا د ډډې شوے دے:

زۀ په خپل کور کې د اوبو ډوډۍ حقدار يم که نه
مانه چا اونکړه پوښتنه چې نهار يم که نه
د دوزخي ګېډې له لاسه ګنهګار يم که نه
دومره څوک نه وائي چې روغ يم که بيمار يم که نه
د وطن داسې مشرانو ته به څۀ ووايم
دې پښتنو ته به په خپله ژبه مړۀ ووايم

اکمل لېونے ډېر ګرځېدلے او لوبېدلے شاعر دے، د ډېرو تماشو نه پس په دې نتيجه رسېدلے دے چې:

دروغ وائي رښتيا خبره کوم ده چې چا وکړه
ښه سپينه او صفا خبره کوم ده چې چا وکړه
جرګه کې د سپين روبو بزرګانو مشرانو
د غلو هغه د غلا خبره کوم ده چې چا وکړه
هر خواته د مړې خېټې خبرې دي چې کېږي
د وږو د مرضا خبره کوم ده چې چا وکړه

"ګلونو ماشومانو" او "سپرليه په خيرونو" کې اکمل د خپلې شاعرۍ يو بل رنګ هم ښودلے دے په رومبني نظم کې يې چې د قوم ماشومانو ته لکه د لقمان حکيم کومې د کار خبرې کړې دي هغه د نوټ کولو جوګه دي، په دويم نظم کې يې د سپرلي د راتول ښکلې منظر کشي کړې ده:

دې للمو ته چې ګورم پکښې پولې که پټې دي
قدرت پرې غوړولي څادرونه د شينکي دي
راکاږي ځان ته زړونه ښکلاګانې د فصلونو
سپرليه په خيرونو

پېشترے که چيلو، کور کمانے که تروپکے دے
قدرت پرې دور راوستو که کندو که شلخے دے
راوړي د کلي جونه ترې پنډونه د ساګونو
سپرليه په خيرونو

اکمل لېوني په دې کتاب کې غزلونه هم شامل کړي دي، د غزل په شعرونو کې يې هم پختګي شته، ژبه يې اسانه او روانه ده، د سنجيدګۍ نه ورکې د مزاح او طنز چاشني زياته ده:

وخت د رښتياؤ دے په زوره وايم
ماله خبره په مزه نۀ راځي

ښکلیه یاره چې یې څومره ترخوې ته
عجیبه ده لا خوږېږي ستا خبرې
ما درسره سم سپین ږیرې ځان وړوکے کړېدے
یه د لېوني اکمل جانانه مجبوري مې ده
دې وخت د ملاقات کې خو څوک مۀ راولے خدایه
دلاسه مې نیولے، ودرولے دے جانان
سرۀ سپین د چا نه، نۀ وړم کلیوالو تنګ نظرو
د مینې لېونے د دیدن غلا ته اوړم راوړم

داسې به په دې مجموعه کې لوستونکي د اکمل نور ډېر ښۀ ښۀ شعرونه ولولي او پوره خوند به ترې واخلي، په دې مجموعه کې څو مرثیې او څو "سهرې" هم شاملې دي، غم او خوشحالي د انسان ژوند سره تړلي څیزونه دي، د ملګرو په وادۀ خوشحالۍ خوشحاله کېدل او په جدایۍ یې غمجن کېدل قدرتي خبره هم ده او د شاعر د خپلو دوستانو، مشرانو او کشرانو سره مینه او علاقه مندي هم ښکاره کوي او د ټولنیز ژوند سره د دۀ کلک تړون هم څرګندوي.

دا د اکمل د شعرونو درېمه مجموعه ده چې د پښتو ژبې مئینانو ته یې ډالۍ کوي، اکمل پښتانۀ او پښتانۀ اکمل پېژني چې یو ریښتونے شاعر دے، مخلص دے، په دې غریبه

غریبۍ کې او په داسې وخت کې چې د څنګ ډېر ملګري یې په یوه یا بله بهانه د قافلې نه بېل شوي دي، دهٔ د باچا خان د پښتو، پښتونولۍ او د پښتون د وحدت او ورورولۍ بېرغ هسک نیولے دے ځکه خو د پښتنو اکمل لېونے او د دهٔ شاعري خوښه ده، د دهٔ شعرونه په ډېر شوق اوري او د دهٔ کتابونه اخلي او لولي یې.

محفل کې د خبرو د کولو خلق ډېر وؤ
اکمله بې له تا خبره کوم ده چې چا وکړه

**ډاکټر اسرار**

هوتي مردان

۲۸ / ۱۲ / ۲۰۰۳ء

# نعت

چاپېره په جهان کې يو تورتم د جهالت وو
هر خواته لور په لور شوکې ډاکې قتل و غارت وو
هيڅ امن چيرته نه وه ظلم جبر وۀ وحشت وو
په زړۀ کې د يو بله د هر چا کرکه نفرت وو
وحشيان وو يو انسان به ويريده د بل انسان نه
بنديان وو خو سرکشه ټول باغيان وو د الله نه

(۲)

سجدې به يې د خدائې په ځائې بتانو ته کولې
د ټولو ګمراهانو عقيدې وې بيلې بيلې
يو تن به جبرني په لار کې ښځې اوغوزولې
هم دغسې بل تن به ترې په توره اوهلې
سنګينې دښمنې يې تر پېړو پېړو پالې
هم دغه ظالمانو ژوندئ لوڼه خښولې

(۳)

هغ به معذزه وه چې چا د ېر کول جرمونه
ځښول يې د يو بل په ککړو کې شرابونه
کول يې د کعبې نه په برېنډه طوافونه
غلطې عقيدې، غلط رسمونه رواجونه
تيرے د جهالت او ګمراهي پرې راخورې وې
څهرې د انسانانو د يو بل په وينو سرې وې

(۴)

خدائې اوغوښتل نقشه يو دم بدله د دنيا شوه
پيدا شو محمد اخر زمان دنيا رڼا شوه
راتلل يې بختور وو معطره پرې فضا شوه
ماحول د جهان مينه، محبت، ښکلا ښکلا شوه
بدلې دښمنۍ او تربګنۍ په رورولۍ شوې
نظام د انصاف، عدل، امن راغلو خوشحالۍ شوې

# غزل

سندرې وائي دار ته په ختلو لېوني
اړنه دي د سرونو په شيندلو لېوني

د امن قاتلانو دا وطن به په ځان اور کړۍ
لا ښه راژوندي کېږي په وژلو لېوني

دا هسې د دې خلقو يو رواج دے يو دستور دے
جوړ شوي چرته نه دي په تړلو لېوني

ما ډېر داسې ليدلي بيرته بيا ندي راغلي
چې ښار ته چيرته تلي دي د کلو لېوني

د عقل خاوندانو څه کمال پکښې ضرور شته
دا خاندي چې د کاڼو په ويشتلو لېوني

رښتيا دي د جهان په سود او زيان يې څه کار نه وي
اکمله څوک چې مينو کړۀ د ښکلو لېوني

ꕥ

# لاسونه

مونږه که هر څومره اوګده کړۀ خپل وارۀ لاسونه
قابض مو نه کړه د ظالم په ګرېوانه لاسونه
د غلامۍ د ژوندون دغه نتيجه اوخته
هميشه بل ته مو نيولي وي خوارۀ لاسونه
پته يې لرې د سپېرو کړو وړو کرښو نه
نور په چا نه ګورو ملګرو دا سپېرۀ لاسونه
په هيڅ هنر بيا د پيوند د اغستلو نه دي
مغلو مات کړل پښتنو له پښتانۀ لاسونه
منم پاسته وو خو حلال يې کړو د سټ د غاړې
مونږه يې اوليدل د تـرۀ او د ورارۀ لاسونه
خدايه دا څه په زورورو اوړېدلے يمه
راته راکاړي د زرګر غوندې په زړۀ لاسونه
د وينو رنګ دې تلې ترې نشي څه نکريزې ندي
راشۍ زمونږه د قاتل اوينۍ سرۀ لاسونه
مجرم جرات کۀ مو مجبور کړي په اظهار کولو
وئيلے هيڅ نه شو پراته مو دي په خُلۀ لاسونه
يو بل له لاس د يو کيدو هم ورکولے نه شو
اکمله مونږه پکښې نه پېژنو غله لاسونه

# رښتيا خبره

دروغ وائي رښتيا خبره کوم ده چې چا اوکړه
ښه سپينه او صفا خبره کوم ده چې چا اوکړه
ما وې درته جانانه ځه په خپله چې پخلا شو
تر مينځه زما ستا خبره کوم ده چې چا اوکړه
جرګه کې د سپين روبو بزرګانو مشرانو
د غلو هغه د غلا خبره کوم ده چې چا اوکړه
د ځان دپاره هر سړے پښتو کوي پښتون دے
د خوارې پښتونخوا خبره کوم ده چې چا اوکړه
هر خواته د مړې خپتې خبرې دي چې کېږی
د وږو د مرضا خبره کوم ده چې چا اوکړه
د کرکې د نفرت خبرې هر طرفته اورم
د مينې د وفا خبره کوم ده چې چا اوکړه
چړې دي چې راښکے شي په مرۍ د مظلومانو
ظالم له د سزا خبره کوم ده چې چا اوکړه
د يو د بل په طمعه خلق پرېوتو په شک کښې
تېرو کې د رڼا خبره کوم ده چې چا اوکړه
دې دور کې هر څوک د زورورو ډله ګوري
زمونږ د ملګرتيا خبره کوم ده چې چا اوکړه

خبرې نن سبا ټولې په مخ په ملاحظو دي
بې رویه بې ریا خبره کوم ده چې چا اوکړه
محفل کې د خبرو د کولو خلق ډېر وو
**اکمله** بې له تا خبره کوم ده چې چا اوکړه

مړ شومه کارونو کړم زرې زرې
سختو روزګارونو کړم زرې زرې
خلق مومي غرونو کې د سرو غمي
ځه مې خپلو غرونو کړم زرې زرې
اے زما بې ننګه بې پښتو یاره!
ستا په سر شرونو کړم زرې زرې
خوا کې چې زما رقیب ته اوخاندې
دغه تدرونو کړم زرې زرې
کله به منزل ته د مقصد رسم
دشتو ریګزارونو کړم زرې زرې
خلقه زهٔ **اکمل** ورسره څه اوکړم
دې خپلو شعرونو کړم زرې زرې

د خپل نظر د تندرونو درته څه پته ده
مونږ دې پرې اوسو د اورونو درته څه پته ده

په محلونو، په بنګلو کې اوسېدونکو خلقو
زمونږ د خاورو د کورونو درته څه پته ده

وار به مو تېر شي ظالمانو د ظلمونو اخير
د مظلومانو د اهونو درته څه پته ده

اے د لالچ تېرو کې ورکه د نامې پښتونه!
د باچا خان د مشالونو درته څه پته ده

ځان ته مغروره د دولت په نشه مستو واورئ
د وږو تږو اولسونو درته څه پته ده

دې موجوده دور کې هیڅ د اغستلو نه دي
یار د ځیزونو د نرخونو درته څه پته ده

اکمل به څه د سپېره ژوند قیصه بیا بیا تېروي
بس خو ښه نه دي د وختونو درته څه پته ده

# اوسه پکښې مه

ماته د دې کلي دومره لړې اندازه
اوسه پکښې مه په مېلمستیا ورته رازه

(۱)

ماته د دې کلي دومره اولګېده پته
څه يې اوس خبر شوم څه نا څه د حقیقته
دلته د انسان وینه ده ډېره بې قیمته
یو اخلي غلط مطلب د بل د شرافته
ورک پکښې نادار دي او بادار دي په مزه
اوسه پکښې مه په مېلمستیا ورته رازه

(۲)

دلته خپل څوک نه پېژني قدر د پردو کوي
دلته رور د رور د سر خبره په پیسو کوي
دلته د خپل کور څوکیداري خلق په غلو کوي
دلته مغل لړي مشري په پښتنو کوي
وتې ترې پخوا د غېرتونو جنازه
اوسه پکښې مه په مېلمستیا ورته رازه

(۳)

دلته مري د لوږې د دې کلي باشنده خلق
دلته کې د غېرو نه زارېږي نادیده خلق
دلته د غرض هوښیارو اوخوړل ساده خلق
دلته د غټانو دښمنان دي پاسمنده خلق
دلته هر یو کار کېږي په مخ په ملاحزه
اوسه پکښې مه په مېلمستیا ورته رازه

(۴)

دلته کې چې اورم بس د زر او زور خبرې دي
دلته دا تضاد دے چې د سپین او تور خبرې دي
دلته امن نشته بس د شر او شور خبرې دي
نن د پېښور مثال د اور او ګور خبرې دي
دلته ن پاسپورټ د خلقو لږي نه ویزه
اوسه پکښې مه په مېلمستیا ورته رازه

(۵)

دلته کې غل برې شي کوتوال سزاوار کېږي
دلته د ظالم په ځائې مظلوم سړے قتلېږي
دلته کې د وړو حق مړو ته ملاوېږي
دلته کې **اکمله**! اپوټه نظام چلېږي
کډه ترې نه نغاره په حیا کې ترې نه ځه
اوسه پکښې مه په مېلمستیا ورته رازه

# یاران

چاته به څه وایم چې څه دي یاران
په خُلهٔ خواږهٔ په زړهٔ تراخهٔ دي یاران
هیڅ یې تر مینځه اعتماد نشته دے
په ساؤکي یو بل ته پراته دي یاران
لیدل یې څه په نه لیدلو خوښ دي
داسې د یو بل نه ماړه دي یاران
نشته دے اوس د محفلونو مزې
وینم تس نس خوارهٔ وارهٔ دي یاران
چغې وهمه ورته نه یې اوري
داسې د مرګ په خوب اودهٔ دي یاران
د کاره اویست تیرو د زړونو
د ژوندانه په ارمان مړه دي یاران
ورسره کور او کلے ګران دے نشي
زهٔ د ناکامه وایم ښه دي یاران
**اکمله!** ځان ترې نه رااونغاړه نور
اوس د پخوا پشانته نه دي یاران

# ګزاره

ځنګه چې يوه ځائې اور او اوبۀ ګزاره نه کوي
دغسې د سازو سره غله ګزاره نه کوي
وچ کاڼي د خوړ دي که د ږوال ترې په هنر وهم
يو بل نه خوئيږي پښتانه ګزاره نه کوي
مخکښې به ټول چم کې اغږل پخول يو ځائې وو
اوس دوه زنانه په تناره ګزاره نه کوي
ما چې د خپل زړۀ په کور کې ځائې کړه کوربانه مې کړل
نن راسره هغه مېلمانه ګزاره نه کوي
ځوې به د ځامنو لوښو پلار شه د مور پلار په کور
اوس تر دريمې ورځې د وادۀ ګزاره نه کوي
لاړله خبره د زرګونو د لکونو شوه
څوک هم په پنځوس او په شپېته ګزاره نه کوي
نور نور خواهشونه يې په زړه باندې وربېږي لا
شيخ صاحب هم صرف په مانځه ګزار نه کوي
پام کوه دهوکه نشې **اکمله!** ملا پرمې تړه
ورږو سره هيڅکله ماړه ګزاره نه کوي

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com


# غزل

چې د وطن او قام په ښه نه راځي
ماله د هغه چا نامه نه راځي
هغه اولاد دې په بلا اولړي
چې پرې د مور او پلار دمه نه راځي
هسې مې مه مجبوره وه واعظه
د سپرلي ورځې دي توبه نه راځي
وخت د ريښتياؤ دے په زوره وايم
ماله خبره په مزه نه راځي
زما ساده زړګيه مه تېروزه
ښکلي هيڅکله په وعده نه راځي
**اکمله!** غم باندې يې واړولم
اوس مې اشنا په تماشه نه راځي

ستا په خوږه ژبه خوږه خبره
ښه ده د ډېرو نه يوه خبره
چې پښتون نه وي هغه څه پوهېږي
د پښتنو په پښتنه خبره
د چل بلا خبرې خوند نه کوي
مونږه پوهېږو په ساده خبره
اکثر د ډېرو خلقو نه خوښېږي
رښتيا خبره وي ترښه خبره
ملګرو څوک چې لري سپک خويونه
په خُلهٔ يې نه راځي درنه خبره
د سوچ او فکر نه چې روستو اوشي
**اکمله!** غوره وي هغه خبره

ᏅᏅ

# شاعران

خدایه که روغ دي که ړاندهٔ شاعران
د خرخ نه بچ کړې لوې وارهٔ شاعران
ګرځي مغل کلي په کلي پسې
په بیعه اخلي پښتانه شاعران
چې نن په یو سبا په بل خرڅېږي
خلقو ته هغه ښکاري ښه شاعران
دې بعضو سپکو ادب اوشرموؤ
ځکه نن غلي دي درانهٔ شاعران
حېران یم خدایه دا پرې څه چل اوشو
برګې جامې اغوندي سره شاعران
شعرونه څه چې روغ شاعر پتهوي
دې موجوده دور کې غله شاعران
ژوندو کې ډېر داسې کسان پېدا شو
چې په پیسو خرڅوي مړهٔ شاعران
ډېر په مشکله سره ژوند به کوي
**اکمله** ستا غوندې سپېره شاعران

ᏣᏰᏗ

راته پېښې دومره ستخې مسئلې دي
چې د اوس نه مو بائيللي حوصلې دي
فکر يوړم د وختونو انقلاب ته
عجيبه ظالمانه يې فېصلې دي
اخر دې کې به څوک کومه اوري
کېږي هر قسم خبرې بلا خُلې دي
عيش عشرت دے خنداګانې دي بنګلو کښې
په جونګړه کې ماتم دے زلزلې دي
مجبوري ده په خُلهٔ غږ کولے نشم
په دې زړهٔ کې مې بلا بلا ګيلې دي
نور قومونه په ارام د مزې ژوند کړي
په پښتون د هرې ډډې نه حملې دي
چې به فخر کو مونږه پرې **اکمله!**
ټيټې شوې اوس هغه جګې شملې دي

# ستا خبرې

په زړګي مې راوړېږي ستا خبرې
رانه چيرې نه هېرېږي ستا خبرې
ښکليه ياره! چې يې څومره ترخوې ته
عجيبه ده لا خوږېږي ستا خبرې
که روان يم ښېه نيولے شمه هلته
چې په کوم محفل کې کېږي ستا خبرې
په هيڅ‌ا هم بدې نه لږې جانانه!
که لنډېږي که اوږدېږي ستا خبرې
که پوره وي کمې نه وي په محفل کښې
خو بيا هم پکښې ځائېږي ستا خبرې
مرغلرې چې اشنا نه دي نو څه دي
ستا د خُلې نه چې دوړېږي ستا خبرې
چې د خلقو د خبرو نه جدا دي
د **اکمل** ځکه خوښېږي ستا خبرې

# سپرليه په خېرونه

مثال د ے چرته نشته په دنيا د ښائستونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو
د ځان سره دي راوړل تاثرات د جنتونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۱)

سپرليه په راتلو دي وړے ژمے مانه هېر شو
که يو کې وه ګرمي بل کې ساړه به راله ډېر شو
پېغام د خوشحالۍ ته بادشاه د موسمونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۲)

دي للمو ته چې ګورم پکښې پولې که پټې دي
قدرت پرې غوړولي څادرونه د شينکي دي
راکاږي ځان ته زړۀ ونه ښکلاګانې د فصلونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۳)

شړشم شه زېړ ګلونه دادے نورې علامې دي
په ښنګ کې په خندا ورته ولاړې جمامې دي
سيالي کوي د يو بل سره دواړه په رنګونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۴)

شپيسترے که چيلو، کور کمانے که تروپکے دے
قدرت پرې دور راوستو که کندو که شلخے دے
راوړی د کلي جونه ترې پنډونه د ساګونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۵)

په خپلو کې يوې بلې ته وائي خورې ګلې
ښکاره شه په ختانو ګېر چاپېره اورې ګلې
کودې به سره راوړو د غانټولو د ګلونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۶)

نن غرونو ته چې ګورم پکښې ونې که واښه دي
تېغونه پکښې لړې که سور مل دي که سابه دي
غندلې د سر ګرځي کړې هوا په تند کونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۷)

تروکي او ړکو پسې چې پېغلې خېژي غر ته
کنډا وته د سپري ياد شو بلو بره سر ته
لنډۍ او نيمکۍ وائي په برغو اوازونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۸)

کمرو کې پمنکي په دروکي يې تيندوڼي
دپاره د خوراک خلق سرونه ترې راتروړي
پيرزو دې په موڼږ اوکړه څه د نوو نعمتونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۹)

ممانې په دانې شي لايې اوس نيولې بور دے
د رنګه تکې تورې په خوراک کې يې سرور دے
اشنا درنه به هيرې شي ميوې د بازارونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۱۰)

بيا ورځې شا ځلمو پياده د پير بابا د تلو دي
په غابښې د بنير وراوړېدل د تماشو دي
ټپه د يا قربان ورسره ټنګ د ستارونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

(۱۱)

چار بيتې کـه سندرې کـه شعرونه د غزل دي
نظمونه که قطعې دي نن سبا د خوند ليکل دي
الهام په لېوني اکمل جاري شو د شعرونو
سپرليه په خېرونو وه سپرليه په خېرونو

# خلق

په ځائې به کم کوز پاتې کېږي خلق
اکثر د وخت سره بدلېږي خلق

وينمه ډېر د معصومانو غونډې
دلته په مم باندې غولېږي خلق

د اصل نسل تور او سپين په نامه
د يو د بل سره جنګېږي خلق

بغض حسد او بدنيتۍ اوخوړل
په ضد پښتو باندې قتلېږي خلق

ځان ځاني غواړي جميعت نه مني
د ملګرتيا نه مې بيلېږي خلق

**اکمله**! بد به وي بدنام به وي تل
په کوم وطن کې چې خرڅېږي خلق

# یادونه

خواږهٔ خواږهٔ وارهٔ وارهٔ یادونه
یو څو بې غمه شان اودهٔ یادونه
څو نوي نوي څو زاړهٔ یادونه
څو ترکېدلي شان وراته یادونه
ګلې په غم کې راته ستا تازه شو
هغه زاړهٔ یادونه بیا تازه شو

(۲)

راته د سترګو په ککو کې ښکاري
مسته مسکا دې په وښکو کې ښکاري
مینه مې ګوره سرو لمبو کې ښکاري
زړهٔ مې ول ول ستا په کمسو کې ښکاري
رامخامخ شه سترګې بیا اوښایه
راته رنګونه د ښکلا اوښایه

(۳)

دا پټې پټې د حیا خبرې
په تورو شپو کې زما ستا خبرې
هغه د خلقو نه په غلا خبرې

هغـــــه د نــــاز او ود ادا خبــــرې

تـا بـه وئيـل چـې ثـوک پـه مـا رانشـي

مــا بــه وې دا موقعــه بـه بيـا رانشــي

(۵)

تــا بــه وې ځــه پــه تــا مئينــه يمــه

مــا بــه وې تولــه مينــه مينــه يمــه

تـا بـه وې ځـان لکـه فرهـاد غونـدې کـړه

زۀ پــه وعــده ســره شــيرينه يمــه

اوس مــې هغــه خبــرې ســتا يــاد ېږي

پـه هـر سـاعت راتـه بيـا بيـا يـاد ېږي

(۵)

هغــه د خونــد خــوږې خــوږې خبــرې

ســـتا پـــه وړه ژبـــه وړې خبـــرې

د اثـــر ډکـــې د مـــزې خبـــرې

**اکمـــل** اقــرار کــوي د دې خبــرې

کــه بــې وفــا يــم پــت پــاللے نــه شــم

بيــا دې هــم چــرې هيــرولے نــه شــم

# نه يو کېږي

پته يې ولګېده نه يو کېږي
دا چا وئيل چې پښتانهٔ يو کېږي

منتشر خوبش دي دا فطرت دے د دوي
بس نه يې خُلهٔ او نه يې زړهٔ يو کېږي

نفاق مو کړېده قبضه په زړونو
دلته نه لوے او نه واړهٔ يو کېږي

منت زارۍ بلا جرګې پرې اوشوې
والله که څوک په ژوندانه يو کېږي

په داسې حال کې چې يو نه شو سره
تس نس اولس به نور په څه يو کېږي

**اکمله!** ويخ اوسه غافله نه شې
مونږه ته بيا د وطن غلهٔ يو کېږي

# ضمير فروش ته

اے په شراب کباب شربت مئينه
د دنياګۍ په عيش عشرت مئينه
اے په سينګار او په زينت مئينه
ضمير فروشه په دولت مئينه
تا مې عزت تا مې حيا لاهو کړه
تا په جمنا او په ګنګا لاهو کړه

(۲)

چې زړه مې غواړي هغ تا اونه کړه
تا د يتيم يسير پروا اونه کړه
هډو پښتنه دې د چا اونه کړه
غريب په ډکه خلۀ خندا اونه کړه
زۀ به کرم داسې او ته دا کوه
شابسې خپله مدعا کوه

(۳)

ستا په رضا باني مې کار اوکه
دا مې په تا باندې اعتبار اوکه
زما د حق نه دې انکار اوکه
په ما دې سمدستې ګزار اوکه
خیر دے کوه ګله یاران داسې دي
د قوم بې ننګه مشران داسې دي

(۴)

ستا د ظلمونو څه مثال نشته
د خوار غریب درسره خیال نشته
ګورم په ډاکه دې دپوال نشته
ډېر بدقسمته یمه مال نشته
دې پښتنو له دې جېلونه جوړ کړه
ځانله دې لوې لوې محلونه جوړ کړه

(۵)

پرون خو ستا پشانې خوار نه وو
روغ په جامو کې دې یو تار نه وو
هډو په پښو کې دې پېزار نه وو
څوک دې خبرو ته وزګار نه وو

نن جادوګره تا اتکل اوکه
دي پښتنو سره دې چل اوکه

(٦)

پرون دې یو کیله دوتر نه وۀ
د پلار نیکۀ دې کجې خر نه وۀ
هډو په خلۀ کې دې اثر نه وۀ
ستاسو کوټه کې د تیم ور نه وۀ
نن د عوام سره دهوکې کوې ته
سېل چې د چین او امریکې کوې ته

(٧)

نن چې په ما باندې خولې راځي
د خپله ځانه مې ګیلې راځي
چې مخامخ ستاسو بنګلې راځي
خولې له مې ځکه اسویلې راځي
وائي **اکمل** چې یا به ځان ورک کړم
یا به د ملکه ظالمان ورک کړم

# ساقي

راکړه یو داسې پېمانه ساقي
شمه چې په څکو يې دیوانه ساقي

دا خو دې توهې د مېکدې کوې
ځم چې وچې شونډې روزانه ساقي

داسې د سرور جهان کې ورک مې که
سم چې مستان شم مستانه ساقي

سختې د جنون تندې اغستے یم
نن مې کړه مېلمه په مېخانه ساقي

لږ په خپل ائین کې دې بدلون اوکړه
ماسره کړه جوړه یارانه ساقي

بیا چرته د غرونو لېونے نشي
مه کوه **اکمل** ته بهانه ساقي

# ګلونه

نن مې په دښته کې د زړۀ ګلونه
په ټوکېدو دي پښتنائۀ ګلونه

ګلونه هر څومره که ډېر دي وي به
زمونږه خوښ دي پکښې سره ګلونه

په اننګو دې خولې داسې ښکاري
لکه په پرخه وي لوانده ګلونه

زار شم قربان شم د سپرلي د راتلو
ښکاره شو سمه په هم په غرۀ ګلونه

د وطن پېغلې ترې نه اخلي مزې
خپل خپل وربل له ګوري ښه ګلونه

**اکمل** به څه کوي په نورو ګلو
خدايه نصيب مو کړې دا شته ګلونه

# انقلاب

دغه د جبر د تاریخ پاڼې سپېزل غواړی
یو انقلاب په خپله خاوره راوستل غواړی

(۱)

د پښتنو د غیرتی سیمې نرانو ځلمو
اے د خیبر د دنګو غرونو باتورانو ځلمو
په پت پښتو په ننګ غیرت مئینو ګرانو ځلمو
په خپل وطن د سره تېرو عاشقانو ځلمو
لوړ محلونه د زر دارو جړقول غواړی
یو انقلاب په خپله خاوره راوستل غواړی

(۲)

په خپل وطن کې اخیر ولې غلامن یو مونږه
ولې بدحاله در په در سیرې ګرېوان یو مونږه
ځو به د غیرو اشاره باندې روان یو مونږه
ښه د هر چا نه پښتانهٔ مسلمانان یو مونږه
هغه د ننګ توري په لاسو کې نیول غواړي
یو انقلاب په خپله خاوره راوستل غواړي

(۳)

دا د مزدور او د کسان او د دهقان وطن دے
دا د ننګيالو پښتنو د زړۀ ارمان وطن دے
دا زمونږ روح زمونږه تن زمونږه ځان وطن دے
د پلا نيکۀ نه راته پاتې ګلستان وطن دے
دا خپلې ويني به پرې خامخا شيندل غواړي
يو انقلاب په خپله خاوره راوستل غواړي

(۴)

چې پښتانۀ يو نو بيا داسې بې پښتو ولې يو
ساه راکښي شته اخر بې ساه لکه د مړو ولې يو
داسې بدحاله ناست په در کې د پردو ولې يو
مونږه خاموشه د اغيار په ناکړدو ولې يو
لوې او واړه د پښتونخوا راپارول غواړي
يو انقلاب په خپله خاوره راوستل غواړي

# غزل

خپل به مې نشي چې پردی دی خلق
دا څه بې خونده بې مزې دي خلق
څه پکښې چاسره ملګرے شمه
قائيل د هرې نظريې دي خلق
چرته هم ځائي د امن نه وينمه
د هر طرفه راپسې دي خلق
داسې په ويخه باندې خوب وړيدي
په مړو حساب دي که ژوندي دي خلق
**اکمله**! چرته ځوک خوشحاله نشته
هر ځائې په زړۀ زرې زرې دي خلق

زړۀ مې بې واره په درزا شي چې دې اوينمه
هسې اشنا وار مې خطا شي چې دې اوينمه
ډېر له حيا نه مخامخ درته کتلے نشم
په ما شيبره تبه راشي چې دې اوينمه
په زړۀ کې وايمه چې ښه به شمه ستا په ليدو
جنون مې يو په دوه سبوا شي چې دې اوينمه

داسې حېران ستا د ليدلو کېفيت ته يمه
ټوله دنيا رانه پناه شي چې دې اوينمه
بيا زه **اکمله** هډو د ځان د حاله نه خبرېږم
سمې ساه ګانې مې بې ساه شي چې دې اوينمه

ﻫ

دا څه بې مقصده زندګي کوو
مونږ چې د بنديانو بندګي کوو
څومره چې خولې له ځانه اوباسو
دومره د زردارو ابادي کوو
خدايه ورېږې خېټې مو مړې نه شوې
شپه او ورځ لګيا يو مزدوري کوو
روغو خلقو هغه لېوني يو مونږ
تل چې په خپل غم باندې ښادي کوو
طمعه د وفا لرو د ښکلو نه
دا سره د پوهې خطائي کوو
څوک دي چې به داد راکړي **اکمله** نن
څه بې قدره وخت کې شاعري کوو

ﻫ

# پښتانۀ

نن سبا هر چېرته چې دي پښتانۀ
لړمانان دي يو بل خوري پښتانۀ

د خدائې د لارې خبر پوهه خلق
لګيا دي هسې جنګوي پښتانۀ

د ضد نه ناوړي پښتو دې ته وائي
خپلو کې يو بل قتلوي پښتانۀ

د بل د تخت د رسېدو په خاطر
وينم د دار تختې له ځي پښتانۀ

نن وطن وال د بل وطن په دلال
پښتانۀ لړي خرڅوي پښتانۀ

دوړ او پرېپته يې هم نه لړي
**اکمله**! هس بې هسه مري پښتانۀ

ستا خبرې که خوږې دي که ترښې دي
مجبورې مې ده زما دپاره ښې دي
په سر سترګو مې قبولې دي جانانه
ستا د خلې که دعاګانې که خیرې دي
چې تیرېږي په ما ستا په انتظار کښې
عجیبه مې د ژوند دغه ورځې شپې دي
یو زۀ نه یم چې دې مینې لېونے کړم
ډېرو تاپسې لنګ کړې موسلې دي
دا په مینه کې څه عار نه دے مئین ته
تېروم به یې تودې دي که سړې دي
که یې هر بتکے بتکے رقیب رقیب شي
په ما ګرانې ستا د چم لارې کوڅې دي
د زړۀ سترګې یې بینا دي هر څه وینې
د مئینو که د سر سترګې ړندې دي
په معنیٰ یې هر څوک پوهه نه دي **اکمله**!
عاشقۍ کې خلقو موندې مرتبې دي

ځان له ناست یم څوک مې نشته د خبرو
رانه زړونه ماړه شوي د ملګرو

غریبي ژوندے سړے په مړو حساب کړي
نن خبرې یا د زور دي یا د زرو

شا په شا زمونږ سرونه تړي داو ته
اوړېدلي یو په داسې جوار ګرو

د همه انسانیت نه یې نفرت دے
دغه حال دے د دنیا د تنګ نظرو

د وطن اختیار په لاس کې د قارون دے
هیڅ تپوس پښتنه نشته د نهرو

سپرلے نه اوس پکښې وینې وطن ستایو
خوند مو نشته دے **اکمله** د سندرو

# ژوند

ژوندون څه دے خو بلا سرې تودې دي
حادثې دي، حادثې دي، حادثې دي
تېرول دلته د ژوند داسې مشکل شو
لکه زول طوفان کې ورړل بلې ډيوې دي
بشري قصابي کېږي هر طرف ته
په لاسونو کې تبرونه دي چړې دي
هر څوک سوچ فکر اخيستي ګوتې شمېرې
بلاګانې د نرخونو ورپسې دي
ډېر غربت زېلي وږي تږي ګرځي
چې دولت لري د هغه چا مزې دي
پښتانۀ هم قصيدې د غيرو وائي
هيرې شوې ترې د پلار نيکۀ قيصې دي
د ظالم د ويرې غږ کولے نه شو
په دې خلو مو د لحد تبې پرتې دي
لوې واړه دې انتظار کوي قيامت ته
اے **اکمله**! دا يې ننبې ننباني دي

ↂ

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com


# پښتو او پښتون

رابېدار مې شو په زړۀ کښې
بيا خوارۀ خوارۀ دردونه
راته مخکښې مخکښې کېږي
خپل نيمګړي ارمانونه
په تنکو ګلونو لړي
د خزان تاوده بادونه
دې حالاتو کې به څنګه
د چا زړۀ شي په قلاره
چې ويزار وي زوئې د پلاره
رور د روره يار د ياره

(۲)

خپل وطن راپورې اور شه
راته کور مقتل خانه ده
خپل ناموس راته پېغور شه
خپله خاوره بې ګانه ده
يو سرکش غوندې ظالم ته
زمونږ زړونه نښانه ده

فکـــر وړے یـــم حېـــران یـــم
خدایـــه دي د ســـازش جنـــګ تـــه
خلقـــــــو اور د ے لګــــــولے
د پښـــتون نـــاموس او ننـــګ تـــه

(۳)

دا مجـــرم غونـــدي جـــرات مـــي
چـــا چېـــړلے پـــه ســـلګو د ے
دا زخمـــي زخمـــي احســـاس مـــي
یـــــو غیـــــرت د پښـــــتنو د ے
هـــر یـــو څـــاڅکے مـــي د وینـــي
دوبـــــاره پـــــه جوشـــــېدو د ے
پـــــه دي دروکـــــي ملګـــــرو
د پښـــــتو تګـــــے پېغـــــور شـــــه
چـــي د اور پـــه بهانـــه راغلـــل
نـــن د هغـــه خلقـــو کـــور شـــه

(۴)

یـــم پښـــتون پښـــتو دي وایـــم
د پښـــــتو نـــــه دي جـــــدا یـــــم
نـــن چـــي څـــه راســـره کېـــږي

دا عمل دے څه سزا یم
ما پښتو سره پښتو کړه
پښتو به ده زۀ خطا یم
په پښتو مې دې قسم وي
په پښتو سرور کومه
په پښتو کې زۀ پیدا یم
په پښتو کې به زۀ مرمه

(۵)

پښتنو ملګرو واورئ
په پښتو مې دا اعلان دے
یم پښتون پښتو مې ژوند دے
په پښتو کې مې ایمان دے
سینه ډال مې ده دښمن ته
په پښتو مې دا بیان دے
پښتو وائي پښتو زده که
پښتو اوکه چې دې خپل کړم
د پښتون بچیه هله
رانزدې شه چې دې ښکل کړم

# غزل

کېږي به ملګرو غریبي زمونږ د عمره ده
برخه ازلي بدنصیبي زمونږ د عمره ده

اے د وخت نادارو په بادارو ملا او نه تړئ
دوي سره پتنه او دښمني زمونږ د عمره ده

څۀ بدبخته قام يو رهزنان مو رهبري کوي
دا د غلامانو غلامي زمونږ د عمره ده

ګرانه ته به مانه، زۀ به تانه ګیله نه کوم
دغه په یو بل بدګماني زمونږ د عمره ده

بیا هم هیڅ د خپلو د پردو د توره پاک نه شو
څو په دې وطن که قرباني زمونږ د عمره ده

ډېر خلق به مونږه نه خفه لږ به خوشحاله وي
خبر دې وي **اکمله**! شاعري زمونږ عمره ده

په خپل وطن کې د خپل کور او د خپل کلي خلق
ما بې قصوره بې ګناه په کاڼو ولي خلق
د څه وئیلو نه اوس نه وئیل به ډېر غوره وي
دا چې په نه خبره هم راسره ننبلي خلق
عجیبه چل دے په کورونو اوس قابض شو رانه
هغه د اور په بهانه باندې راغلي خلق
اوس په رهبر باندې ګمان هم د رهزن کومه
متل دے پړو نه وېرېږي مار خوړلي خلق
ځان ځان له خوښ دي پرېشانه جمیعت نه مني
دا د یو بل نه مړه خوا او شوکېدلي خلق
نشي ویړیا ازادي غواړي قرباني د وینې
د سره تېرو ورله پکار دي ملاتړلي خلق
ملګرو نن خو د پښتو پوښتنې هغوي ماتې کړې
څوک چې یادېږي د پښتو په نوم ښاغلي خلق
**اکمله**! قدر چې د چا په ژوندانه اونه شي
څه پرې که پس د مرګه ژاړي یې په ځلي خلق

چې پرې د حق اواز کولې نشې
شونډې مېدان کې پرانستلې نشې
ظالم د حق په تېغ وهلې نشې
چې پرې رښتيا رښتيا وئيلې نشې
زۀ داسې خلې ته خلۀ وئيلې نۀ شم
د کمر سوړه د دې خلې نه ښه ده
مېدان کې چغه د وسلې نه ښه ده

(۲)

ظلم زياتې چې په مزدور کوي
غريب ته خيال لکه تربور کوي
په نورو خلقو څه پروا نه لري
چې شمله اوتړي غرور کوي
بيا د هغې شملې نه کومه فائده
ماته کټوې د دې شملې نه ښه ده
مېدان کې چغه د وسلې نه ښه ده

(۳)

چې وعده اوکړي بیا یې پوره نه کړي
مېړانه خلقو ته ښکاره نه کړي
عبس دي چغې غریبان زنده باد
ځان چې ملګرے ورسره نه کړي
هسې دهوکې دې قام له نه ورکوي
نه فېصله دې فېصلې نه ښه ده
مېدان کې چغه د وسلې نه ښه ده

(۴)

مېدان ته اوزه پښتو دغه ده
موقعه دښمن ته د کتو دغه ده
که سر دې لاړ شي خو چې روستو نشي
ورځ د ظالم د پرېوتو دغه ده
ګرېوان ترې اوشلوه چې بیا نه کوي
په مخ سپېره د حملې نه ښه ده
مېدان کې چغه د وسلې نه ښه ده

# خط ليکمه

په دعاګانو سلامونو يار ته خط ليکمه
ګورمه توري د لفظونو يار ته خط ليکمه

د سترګو تور د زړۀ ټکور ښکلے جانان د مينې
څه په خوږو خوږو نومونو يار ته خط ليکمه

نه په زړۀ تور يم نه په خلۀ تورې خبرې کوم
زۀ تل په سپينو کاغذونو يار ته خط ليکمه

پيسې که نشته د اخلاص پنګه خو شته راسره
په قلم شوو قلمونو يار ته خط ليکمه

کله که هم چرته رقيب د ضد خبره اوکړه
زۀ به د وينو په رنګونو يار ته خط ليکمه

په غوږ يې اوري او د زړۀ تل ته يې هم کوزوي
**اکمله**! ځکه په شعرونو يار ته خط ليکمه

د پاڅېدلو نه يم سم راغورزېدلے يمه
په سپېرو کاڼو ستا د چم راغورزېدلے يمه

ماله په ښه سړي اوبۀ دم که ساختونه اوکه
مرګي حال پروت يم جوتي خورم راغورزېدلے يمه

داسې په چغو د زخمونو د دردونو نه يم
لکه دړوکي د تورتم راغورزېدلے يمه

راشه دلاسه مې لږ اونيسه او پا مې سوه
زما وجود کې نشته دم راغورزېدلے يمه

نور مې په دې کوڅو کې څه کول او کار مې څه وۀ
دا ستا ديدن لره راتلم راغورزېدلے يمه

هيڅ مې دردونه د زخمونو په دارو ښه نه شو
ګډه پرې د سپينې خلې مرهم راغورزېدلے يمه

ستا په خمار نشو نشو سترګو غزل ليکمه
نن دې جانانه په دې مړو سترګو غزل ليکمه

چې يې بانه لکه د غشو په زړګي خښيږي
هر څه چې کيږي په هغو سترګو غزل ليکمه

زۀ که ترې اور اخلمه زر ځلمه دې واخلمه خو
په دغه سرو بلو لمبو سترګو غزل ليکمه

تش په کتو چې ورته هم بې هوشه کيږي خلق
په هغو ډکو پېمانو سترګو غزل ليکمه

خدائې دې په ژوند کې چرته داسې حالات نه راولي
چې بې لتا به پردو سترګو غزل ليکمه

بلا ښائسته د چا مغلو سترګې نه خوښوم
**اکمله**! زۀ په پښتنو سترګو غزل ليکمه

اشنا غلط مطلب زما د لېونتوبه اخلي
داسې به څوک وي چې په سر به د شر لوبه اخلي
خپلو کې نه يو کېږي ټول مشتي ګرېوان دي سره
خلق فائده د پښتنو د ساده توبه اخلي
په اورېدلو ئې چا اوژل څوک اوخندېدل
دنيا به کومه معنىٰ بيا زما د خوبه اخلي
د دې بې پته پښتنو پښتو مې هم اوليده
والله که ساده موجوده مغل درعوبه اخلي
**اکمله**! غواړه د دوران د انقلابه امان
مهې به ډېر مشکلا سا بيا په وچو به اخلي

ଓଓ

چاته به څه وايم چې چا راباندې کوډې اوکړې
چې پرې مئين شومه اشنا راباندې کوډې اوکړې
خلقو هر څو که راته وې خو ما به نه منله
پوهه شوم اوس چې يې رښتيا راباندې کوډې اوکړې
که يې په خپل سمي وژلے وے خفه به نه وم
يا د اغيارو په وېنا راباندې کوډې اوکړې

ملګرو زۀ يې په خوږو خوږو خبرو يوړم
څه په اعتبار کې يې په غلا راباندې کوډې اوکړې
چې مې پنځه وخته **اکمله**! پسې نيت تړلو
هغه د خپل جمات ملا راباندې کوډې اوکړې

غريبو پام کوئ غټانو راسره خبر نه کوي
چې وس يې رسي په هيڅ شان راسره خبر نه کوي
اخلي زمونږ د ساده توبه ناجائزه فائده
دا چلته پورته هوښياران راسره خبر نه کوي
لکه لېوان زمونږه وينو څښلو ته تږي ناست دي
دغه د امن قاتلان راسره خبر نه کوي
هغه شين سترګي انګريزان خو ښه ده نشته دلته
اوس يې سور سترګي شاګردان راسره خبر نه کوي
**اکمله**! خپل کلي کې هم تېروو ژوند په وېره
د نورو کلو دلالان راسره خبر نه کوي

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com


اوسني ښکلي ډوک بوګيان دي د چا نه خپلېږي
صرف د خپل غرض ياران دي د چا نه خپلېږي

د چا ژړا آه او فرياد پرې څه اثر نه کوي
د سختو زړونو مالکان دي د چا نه خپلېږي

په زړهٔ کې پټ به دې بندونه د وژلو تړي
په سپينه خلهٔ به درته خاندي دچا نه خپلېږي

څوک دې پرې هسې د خپله سر وماله نه تېرېږي
ملګرو ګران دي بلا ګران دي د چا نه خپلېږي

چرته فائده به په خپل ژوند کې ترې نه اونه مومې
مئينېدل پرې د تاوان دي د چا نه خپلېږي

منم چې يو نيم وفادار به چرته هم وي پکښې
ګنې اکثر داسې کسان دي د چا نه خپلېږي

اکمله پام کوه په غېږه کې يې مه لوبوه
په زړهٔ به تک درکړي ماران دي د چا نه خپلېږي

# پښتونخوا

دا تپوس کوم چې اخر څه ملک به تباه شي
کوم قيامت به راشي
نوم د دې وطن که د سرحد نه پښتونخوا شي

(۱)

دا تپوس کومه د دې بعضو تنګ نظرو نه
خاص د خپل غرض د پاره مونږ سره ملګرو نه
څاڅي چې يې زهر د خوږو خوږو خبرو نه
مونږ پسې چې توري يې راويستې دي د زغرو نه
غم مه کوئ لاس ښپه به يې بيا چرته خطا شي
کوم قيامت به راشي
نوم د دې وطن که د سرحد نه پښتونخوا شي

(۲)

سندهـ ته ځکه سيندهـ وائي چې دغلته سيندهيان اوسي
ګوره په صوبه بلوچستان کې بلوچستان اوسي
داسې که خيال اوکړې په پنجاب کې پنجابيان اوسي
دلته کې ښاغلي پښتانهٔ بهادران اوسي

نور پکښې بیا څه دي پښتونخوا دې خامخا شي
کوم قیامت به راشي
نوم د دې وطن که د سرحد نه پښتونخوا شي

(۳)

زۀ مې خپلو رونو پښتنو ته فکر وړے یم
هسې مې خلاف دي لېونو ته فکر وړے یم
زار د پخوانو شم اوسنو ته فکر وړے یم
تش په نوم سړي دي ارتینو ته فکر وړے یم
تول که اتفاق اوکړي په دې باندې رضا شي
کوم قیامت به راشي
نوم د دې وطن که د سرحد نه پښتونخوا شي

(۴)

یه کم عقله خلقه که سوچ اوکړي سرحد څه ته وائي
کرکه نفرت څه ته وائي بغض حسد څه ته وائي
ولې مو دا جهل اختیار کړېدے ضد څه ته وائي
دې ته چې بد نه وائي نو نور به لابد څه ته وائي
نوم ورله ضرور ګدي چې معصوم کله پېدا شي
کوم قیامت به راشي
نوم د دې وطن که د سرحد نه پښتونخوا شي

# وطنه

که څوک اورنګ د زمانې وه که فيرنګ وطنه
کړېدے مونږ ورسره ستا دپاره جنګ وطنه

هيڅ يو مېدان کې د دښمن نه روستو شوي نه يو
شته په تاريخ کې مو قيصې د نام وو ننګ وطنه

مونږه پرې دغسې ورغلي يو خالي لاسونه
که د دښمن سره وه توپ او که تفنګ وطنه

د چارسدې بابړه اوپښته ټکر اوپښته
ستا ننګيالو د مرګه نه دے کړے څنګ وطنه

د پېښور قصه خوانۍ کې قيصې اوس هم کېږي
د شهيدانو د غيرت په وينو رنګ وطنه

ظالم واکدار که ځان يزيد او په شمر بللے
پښتون پرې هم لکه حسېن کړے غورزنګ وطنه

ꕥ

دلته ماړه لړي نهر خلق په کانړو ولي
خوش دي د امن نه په شر خلق په کانړو ولي
د لېونتوبه اثر زيات دے د دولت د نشې
قارون زادګان وينم اکثر خلق په کانړو ولي
د کراچۍ او هندوستان مهاجر يو بل ښکلوي
دلته يو بل د لر او بر خلق په کانړو ولي
نور په دنيا کې به څوک داسې بدقسمته نه وي
مونږ په خپل کور کې د بهر خلق په کانړو ولي
حېوانيت چې ورته نه وايو نو څه به ووايو
د شپې سپوږمۍ د ورځې نمر خلق په کانړو ولي
ملګرو ګرانه ده چې جوړ د لېونتوبه شمه
کله مې زړۀ کله ځيګر خلق په کانړو ولي
چا چې تړول ژوند وي وفق کړے د پښتو دپاره
**اکمله!** هغه سخنور خلق په کانړو ولي

ശ്ര

# حق او باطل

هر خوا چې ګورمه دردونه مصيبت جوړ دے
سينې د بغض کينې ډکې لوې افت جوړ دے
پکښې جګړې جنګ جدل فرعونيت جوړ دے
نه خوشحالي شته نه ارام شته قيامت جوړ دے
نفسي نفسي ده پلار او زوې جدا جدا وينمه
د جهنم لمبې سرګندې په دنيا وينمه

(۲)

دا د ظلمونو ستونو نه تياره دنيا
دا ظالمان پېدا کونکي حملداره دنيا
هم دروغژنه، دهوکه بازه او ناکاره دنيا
دا بدګفتاره، بد اقراره، بد کرداره دنيا
د حق په خونه د باطل دپاره اور لګوي
لا بې قصوره د غريب لمبې په کور لګوي

(۳)

په ګرمه ونه د مزدور کارخانه دار کړي فخر
ډاکټر د وخت په تکليفونو د بيمار کړي فخر

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com



ځوک بـه بنګلو ځوک پـه کرسو د اقتـدار کړي فخر
عـيش پرسـتي تـن پرسـتي بانـدې زردار کـړي فخـر
نــن د حــاکم پــه مخکښــې چغــه د امــداد ګنــاه ده
مقابلـــه کـــې د ظـــالم اه و فريـــاد ګنـــاه ده

(۴)

د حــق پــه مخکښــې د باطــل ظــالم لښــکر ګرځــي
حــق د منصــف د عــدالت نــه لاس پــه ســر ګرځــي
لاد باطـــل د ويـــرې هغســـې اوتـــر ګرځـــي
غريــب د لــومې نــه بــې کــوره دے نهــر ګرځــي
د ظالمـــانو دا ړنـــدۀ دنيـــا تبـــاه غـــوارم
چـــې مســـاوات قـــائموي داســـې دنيـــا غـــوارم

(۵)

يو خوا چې ګورمه مظلوم سيرې ګريوان پروت دے
بل خوا شيطان دے په جامه کې د انسان پروت دے
يـو خـوا زردار د چـا د غوښـو پـه ارمـان پـروت دے
بل خوا بې تابه خوار غريب په وير د ځان پروت دے
يــو الهــیٰ د دې غريــب پــه تــن کــې ســاه راولــه
بــل پــه فرعــون پسې د وخـت نـوے موسـیٰ راولـه

(۲)

د غریب مینه کې بې تابه ناقرار خوښ یم
هر څه چې کېږي ملګرتیا کې د نادار خوښ یم
لکه منصوردان الحق په دې ګفتار خوښ یم
که په رښتیاو سنګسار ږم مه سنګسار خوښ یم
د حق دپاره مې کړه ویخه ګنهګاره ژبه
په سر د دار مې خېژوي خپله ناکاره ژبه

☙❧

څه یو دوه نه دي ما بلا خلق په کاڼو ولي
ستا په کوڅه کې مې اشنا خلق په کاڼو ولي
د نورو خلق نه ملګرو ګیله څنګه اوکړم
چې مې د خپلې پښتونخوا خلق په کاڼو ولي
څوک چې مجرم وي که په کاڼو لږي باک یې نشته
ما بې قصوره بې ګناه خلق په کاڼو ولي
که نور ښه نشي کوې راسه تماشا خو اوکړې
راجمعه شوې دې ما بیا خلق په کاڼو ولي
**اکمله**! هر څوک چې د مینې لېونې یادېږي
دغسې خلق خامخا خلق په کاڼو ولي

☙❧

دا چې د چا وي نن يوه او سبا بله ډله
پښتونۀ پام کوه ساته د داسې غله ډله

ډله منم چې د چا نه وي خو ايمان يې نه وي
شرط پکښې دا دے چې يې ډله وي هم ډله ډله

زۀ چې نن وينم د خدائي خدمت ګارانو بچي
په تلو راتلو باندې لا اوشرموله ډله

اوسنو خلقو په پيسو خرڅه کړه اوئې بائيلله
پخوانو خلقو به په سرو وينو ګټله ډله

په پښتنو کې چې پښتو وه او بې پته نه وو
ټولو قامونو د دنيا به يې منله ډله

څوک چې يوه ډله پسې دي څوک په بله پسې
د پښتنو نه ورکه شوې هغه خپله ډله

د خپلې ګرانې پښتونخوا خورو ورو پښتنو
راځئ چې يو شو سره ټولو لويو وړو پښتنو

چې ټول په خپلو کې جرګې او مرکې جوړې کړو
د يوه بله مړه خوا به يو تر څو پښتنو

نورو قامونو ځان له خپل خپل مشران اوټاکل
مونږه کوو لا خوشامندې د پردو پښتنو

روغ راته څوک نه وائي خود به لېوني ګڼي مونږ
چې د خپل کور څوکيدارې کوو په غلو پښتنو

چې بل يې خورې ترې نه تپوس هم د خپل حق نه کوې
نوم به د بدو هميشه وي د هغو پښتنو

هغسې ښه شعرونه ښکلې اوایم
خوارۀ خوارۀ شعرونه ښکلې اوایم

د سپکو خلقو په دې سپک محفل کښې
درانۀ درانۀ شعرونه ښکلې اوایم

د مرګ په خوب باندې اودۀ خلقو ته
د ژوندانۀ شعرونه ښکلې اوایم

چې رانه ګېر چاپېر مغل پراته دي
زه پښتانۀ شعرونه ښکلې اوایم

په دې سړه سړه فضا کې اخير
تاوده تاوده شعرونه ښکلې اوایم

چې هره ورځې بدلوي رنګونه
هغوي ته سره شعرونه ښکلې اوایم

**اکمله**! خلقو په بارودو اوسول
نور په خپل غرۀ شعرونه ښکلې اوایم

*

# رښتيا

ما وې چې بيا به په کاغذ باندې قلم کې نه ږدم
د چا خانانو په بنګلو کې به قدم کې نه ږدم
کټ به په خوا کې د دې غټو په قسم کې نه ږدم
خلۀ کې به زۀ د پښتنې شاعرۍ بم کې نه ږدم
هغه توبه مې ماتومه ابتدا کومه
چې هر څه کېږي خو توکل په يو الله کومه

(۲)

بيا چې هم اورم د جابر او د مجبور خبرې
د چا شاهانو قصيدې او د مزدور خبرې
د وږو تږو انسانانو د ضرر خبرې
اخر مجبور شومه يو څو مات ګوډ شعرونه ليکم
د وچو شونډو غم زپلو فريادونه ليکم

(۳)

خبر دے دښمن دے د هر چا شمه رښتيا به وايم
هر څه چې کېږي ولې ښه صفا صفا به وايم

قیصه ده پټې فنا نه ده برملا به وایم
چې څه مې اوې د محفل ملګرو دا به وایم
یو خوا وطن کې په بنګلو کې تنګ ټکور ولې دے
بل خوا جونګړو کې ژړا فریاد او شور ولې دے

(۴)

زۀ په خپل کور کې د اوبو ډوډۍ حق دار یم کنه
مانه چا اونه کړه پښتنه چې نهار یم کنه
د دوزخي ګېډې دلاسه ګنهګار یم کنه
د وطن داسې مشرانو ته به څه اوایم
دې پښتنو ته به په خپله ژبه مړه اوایم

(۵)

زۀ هم شاعر یمه د حق تپوس کولے شمه
سترګې لرمه دغه هر څه پرې لیدلے شمه
غل او ډاکو، قاتل سمګلر ټول پېژندلے شمه
د دو د خېټو نه دا هر څه راوېستلے شمه
ښه به وي دا چې کونډو رنډو له حساب ورکړي
یا لېوني **اکمل** له سم دستي جواب ورکړي

زما ساده ملګري څه هوښیاران غله اوخاته
هر چا اوس وپېژندل ښه د دوران غله اوخاته
ګوره د ډېرو وسائلو د هتیار سره
د ملک سپاهیان مې هم د جنګ په مېدان غله اوخاته
اوائې نور به د انصاف امید د چا نه کوو
په قام مین هغه د سر مشران غله اوخاته
غوره به دا وي چې ځانونه ترې رااونغاړو نور
محفل ته شان د ورتلو نشته یاران غله اوخاته
نور اوسېدل مو پکښې اوس د خطرې سره دي
زما د کلي د مکان مالکان غله اوخاته
بتان په ترخ کې او سرې په پټکي پټه ساتي
تش په نامه مسلمانان د ایمان غله اوخاته
د خدایه خېر غواړه **اکمله**! ډېر نازک دي حالات
ډېر نوموړي د پښتو شاعران غله اوخاته

څه خو مړ نه وم چې ژوندے شوم په ځان نه پوهېږم
د معصومتوب نه چې ځلمے شوم په ځان نه پوهېږم

ډېر ارماني يې د دين وم چې ترې لرې ومه
څنګ ته د يار چې ورنژدې شوم په ځان نه پوهېږم

پردي خو هسې هم پردي وي خپلېدلے نشي
زۀ خو د خپلو نه پردے شوم په ځان نه پوهېږم

خلق که دين نه وي دنيا خو خامخا اوګټي
زۀ نه د هغې نه د دې شوم په ځان نه پوهېږم

لکه د شل اوس د سيالي منډه وهلے نه شم
پاتې ملګرو نه وروستے شوم په ځان نه پوهېږم

چې ما **اکمل** په لېونو پورې خندا کوله
خلقه په خپله لېونے شوم په ځان نه پوهېږم

ﮂﮃ

د اوسنۍ زمانې ښکلي د چا نه خپلېږي
مونږ څو څو ځله ازمائيلي د چا نه خپلېږي

خوږو ملګرو قسما قسم تجربې پرې اوشوې
په خپل ښائست غره ښاغلي د چا نه خپلېږي

د عاشقانو قرباني د چا نه پټې نه دي
که په ځان جوړ کړې ورته څلي د چا نه خپلېږي

لکه د باز چې مې ساتلي وو د زړهٔ په غوښو
اوس مې په کاڼو باندې ولي د چا نه خپلېږي

شته يې قيصې په کتابونو کې که اودې لوستې
ډېرو پرې مال و سر بائيللي د چا نه خپلېږي

ساده **اکمله**! چې د سر بازي پرې اونه تړې
دا هوښياران زمونږ د کلي د چا نه خپلېږي

# انصاف

ګیله د ګله که د بلبل که د خزانه وکړم
پښتنې وینې د انصاف امید د چا نه وکړم

زۀ د خپل سر و ماله تېر یم د وطن په مینه
باران د اوښکو وروم د دې چمن په مینه
نشته تمیز د ښه او بد که څه مېرانه وکړم
پښتنې وینې د انصاف امید د چا نه وکړم

یو خوا په وینو مې د دې چمن ګلان سره کړل
بل خوا محل کې مې د چا ښکلې لبان سره کړل
نن چې پرې ځانګې لړ تپوس به له پېزوانه وکړم
پښتنې وینې د انصاف امید دچا نه وکړم

جنګ کربلا چې د اسلام سینه کې داغ ولړو
چا یزیدانو په هغې مېدان کې باغ ولړو
فاطمې څه شوي د حسېن تپوس چې ستا نه وکړم
پښتنې وینې د انصاف امید د چا نه وکړم

د دې چمن هغه ګلان يې په توهين تالاکړه
مونږ چې ماليار ماليار ګڼه هغه ګلچين تالاکړه
څو اسويلي به سوي سوي د ارمان وکړم
پښتني وينې د انصاف اميد د چا نه وکړم

دې د ظلمونو انتها ته به څوک څه وائي
دې زور زياتي او ناروا ته به څوک څه وائي
**اکمله**! ګرانه ده چې ګټه بې تاوانه وکړم
پښتني وينې د انصاف اميد د چا نه وکړم

څه پرېشانه ورځې شپې د ژوندانه دي زما
خوشحالي نشته دے غمونه مېلمان دي زما
ځان ته پښتون وائي او بيا هم په پښتو شرمېږي
په پښتونخوا کې بعضې داسې پښتانهٔ دي زما
څوک چې په زړهٔ کې ځايه ومه په چا ورک مين يم
پراته د هغه خلقو لاس په ګرېوانه دي زما
د خوږو زړونو مسيحا هله رااورسېږه
خښې چړې په لړمانه د بېلتانه دي زما
سپرلے به وي ملګرو زهٔ ترې نه منکر نه يم
وائي **اکمل** د خوشحالۍ ورځې لا نه دي زما

# د پښتونخوا نوم پرې ليکمه

صوبه سرحد د خپل وطنه ورانومه
د پښتونخوا نوم پرې ليکمه
د پښتنو د زړهٔ ارمان پوره کومه
د پښتونخوا نوم پرې ليکمه

(۱)

څه نوې نه ده دا زړهٔ نامه ده
پښتونخوا ښکلې او خوږه نامه ده
زمونږه خوښه ده درنه نامه ده
دغه انګريز ايښود ے نوم کله منمه
د پښتونخوا نوم پرې ليکمه

(۲)

بلوچستان د بلوچانو وطن
دغسې سندهـ د ے د سندهيانو وطن
پنجاب هم د ے د پنجابيانو وطن
خو زهٔ پښتون د وطن نوم نه پيژنمه
د پښتونخوا نوم پرې ليکمه

(۳)

خپل ننګ غیرت پښتو حیا به ګټم
د سر په بیعه پښتونخوا به ګټم
چې ما یې نوم واغستو دا به ګټم
ځدي پښتون یم په ډیران ارت بیلمه
د پښتونخوا نوم پرې لیکمه

(۴)

ګران احمد شاه بابا پښتون ښاغلي
سوونه کاله مخکښې دا وئیلي
د پښتونخوا د غرو سرونه ښکلي
چې را په یاد شي د ډیلي تخت هېرومه
د پښتونخوا نوم پرې لیکمه

(۵)

د پښتنو پېژند ګلو پښتونخوا
زمونږ د لویو د وړو پښتونخوا
ده یوه سیمه د زمرو پښتونخوا
ملګرو زۀ یې په جنت باندې بلمه
د پښتونخوا نوم پرې لیکمه

(۶)

د وخــت حــاکم تــه دا خبــره کــوم
پـــه ډاډه زړۀ يـــې زړوره کـــوم
مطالبـــه ترېنـــه پـــه نـــره کـــوم
پــرې قــرارداد د پښــتونخوا منظورومــه
د پښـــتونخوا نـــوم پـــرې ليکمـــه

(۷)

دا د خوشــحال او د رحمــان وطــن دے
دا د ايمــل او دريــا خــان وطــن دے
د باچــا خــان فخــر افغــان وطــن دے
**اکملـه**! زۀ بـه يـې پـه سرو وينـو پالمـه
د پښـــتونخوا نـــوم پـــرې ليکمـــه

خپله د خپل ځان حفاظت دے پکار
قومه راپورته شئ همت دے پکار

(۱)

قومه راپورته شئ تباه نشئ
لکه د پیاز په ګټ کې سخا نشئ
د کندو شاته په ژړا نشئ
د غیرو خلقو د خندا نشئ
میدان ته اوزئ غیرت دے پکار
قومه راپورته شئ همت دے پکار

(۲)

دلته دیره کوم قصابان چې وینئ
دا خود غرضه مشران چې وینئ
دغه د امن قاتلان چې وینئ
زمونږ د وینې دښمنان چې وینئ

دې ظالمانو نه نفرت دے پکار
قومه راپورته شئ همت دے پکار

(۳)

که دا خپل قوم تباه کول نه غواړې
که زمونږ حق په بل خوړل نه غواړې
که ځان د غل په نوم بلل نه غواړې
که غریبان خرابه ول نه غواړې
خپلو کې مینه محبت دے پکار
قومه راپورته شئ همت دے پکار

(۴)

مونږه چې خپلو کې خوارۀ شو سره
چې یو اواز شو یوه خلۀ شو سره
لکه یو رونړه پښتانۀ شو سره
یوه به په خوند د ژوندانه شو سره
**اکمله**! مونږ له جمیعت دے پکار
قومه راپورته شئ همت دے پکار

قوم يې تباه كه داسې غل دے پكښې
ښه ورته پته ده خو چل دے پكښې
نن سبا ملك كې د رشوت په وجه
د خان مزې دي د دولت په وجه
د سياست منافقت په وجه
غريب تباه دے د غربت په وجه
پښتنه نشته دے اوربل دے پكښې
ښه ورته پته ده خو چل دے پكښې

(۲)

پرتې چې مخكښې د مالدار غوښې دي
چې خوار كه د هر بادار غوښې دي
دا د ناچاره غريب خوار غوښې دي
زما او ستا غوښې د ښكار غوښې دي
جوړ شوے مونږه ته اتلك دے پكښې
ښه ورته پته ده خو چل دے پكښې

(۳)

د دې ستم نه هر بشر خبر دے
پته ترې نه ده برابر خبر دے
ملګرو ښه په زير او زور خبر دے
ترې چپړاسي بابو افسر خبر دے
ځکه څه نه وائي چې ول دے پکښې
ښه ورته پته ده خو چل دے پکښې

(۴)

دا څه د ظلم کارنامې جوړې شوې
زمونږ د غوښو نه قيمې جوړې شوې
د دغه سپو پرې څه غوېمې جوړې شوې
تيکې ترې دوې له د غرمې جوړې شوې
لا د شرابو پروت بوتل دے پکښې
ښه ورته پته ده خو چل دے پکښې

# ځلمے یم

زۀ نغمه د سوي زړونو
او دۀ روح بېدار ومه
زۀ شپیلۍ د اسرافیل یم
مړي هم راپاڅومه
زۀ یو تندر په ظالم یم
سره اورونه بلومه
کله کله زلزله شم
محلونه لړزومه
د دې خاورې دښمنانو
ننګیالے پښتون ځلمے یم
زۀ د خپل وطن په مینه
لېونے یم سپېلنے یم

(۲)

دا وطن د پښتنو دے
په دې خاوره کې مستي ده
د دې دنګو دنګو غرونو
هره تیږه قیمتي ده

هر ځلمے د وطن ګل دے
هره پېغله غیرتي ده
پکښې زړونه خوشحالېږي
زمونږ سیمه جنتي ده
تش رباب له ټنګ ورکومه
نور همه نغمې نغمې یم
زۀ د خپل وطن په مینه
لېونے یم سپیلنے یم

(۳)

نور اودۀ کښېناستے نشم
ګرځم قام راوېښه ومه
ناخبره سر بېري
پښتانۀ راپاروم
د غفلت خوبونو وړي
شا ځلمي رالړزومه
چې ملا اوتړي راپاڅي
په بېل بېل پسې ورځمه
هر دښمن لره افت یم
خپلې خاورې له سپرلے یم
زۀ د خپل وطن په مینه
لېونے یم سپیلنے یم

(۴)

د همه چا و دلو زړونو
د عمرونو تمنا یم
محلونو کښې تورتم یم
په جونګړه کې رڼا یم
د وطن د لیلیٰ زلفې
د پښتو په ژبه ستایم
د خپل مال و سره تېر یم
څکه سپینې سپینې وایم
زولنې په ښپو کې وړے شم
چې تر څو پورې ژوندے یم
زۀ د خپل وطن په مینه
لېونے یم سپېلنے یم

(۵)

د تکرو د یزیدانو
نه کومه تپوسونه
لامې مخکښې مخکښې کېږي
د بابړې مېدانونه
دا د چا په وینو سرۀ دي
ګېر چاپېره د بوالونه
دي لوټ کړي راته یاد دي

چــا د پېغلــو عصــمتونه
چــې فرعــون لــره موســیٰ وه
د هغــې نیکــهٔ نمســے یــم
زهٔ د خپــل وطــن پــه مینــه
لېــونے یــم ســپیلنے یــم

(۲)

چــې زمــا د ســر قاتــل دے
ولاړ مخکښــې د قصــاب یــم
زهٔ یــوه چغــه د پښــتون یــم
زهٔ تــاریخ کــې نــوے بــاب یــم
ځمــه بــل لــه غــوږ تاومــه
زهٔ بــه څــو د بــل رببــاب یــم
د تــن وینــه مــې جوشــېږي
زهٔ یــو نــوے انقــلاب یــم
چــې پــه ننــګ غیــرت پښــتو مــري
ځــه پــه هغــه چاپســې یــم
زهٔ د خپــل وطــن پــه مینــه
لېــونے یــم ســپیلنے یــم

# ماسخوتن

نن هيڅ درک د رڼا هم نه لرو تور ماسخوتن
زما په زړهٔ او ذهن دواړه وو راخور ماسخوتن

هسې مې ټوله شپه ښارلې هغه لارې کوڅې
دې نه به ښه و که ټبر کړے مې وے کور ماسخوتن

سمه د مړو اديره وه د يارانو محفل
چې د جانان د خلې مې نه وه پکښې شور ماسخوتن

زهٔ به يې نور د سپېره والي چاته څه وايمه
د ټبرېدو نه وه خو ټبر مې که په زور ماسخوتن

خلقه! که هسې څه ښکالو به مې تر غوږو شوله
کاواک کټل به مې هر خواته لو په لور ماسخوتن

لکه دا نن چې څنګه وه په مونږ مئينو باندې
**اکمله**! داسې دې خدائې نه راولي سپور ماسخوتن

ꕥ

# د مزدور حال

دا چې په لاس کې د ظالم کارخانه دار ګټه ده
دا د نړۍ د دغه خر پړ مزدور کار ګټه ده
دا په بنکونو خزانو کې چې انبار ګټه ده
په ظلم زور تري نه قبضه شه د دې خوار ګټه ده
د دې غريب پکښې ډوډۍ، جامه، پېزار نه رسي
په خپله ګټه کې حصه د مزدور کار نه رسي

(۲)

په خپل ګټلي مال کې ټول عمر نهار يو مونږه
شلېدلي غاړه بې څادره خوار و زار يو مونږه
نوابان مونږه نوابان کړه قصور وار يو مونږه
غمژن بدحاله وږي تږي قرضدار يو مونږه
په دې ژړا فرياد نعرو غوږ رپولے نشي
دې ظالمانو نه تپوس قدر کولے نشي

(۳)

وينې، خولې، اوښکې زمونږ دی پرې خانان کړي مزې
د تن په غوښو مو د نن وخت واکداران کړي مزې
تقسيم يې وکه کورنۍ کې پرې ياران کړي مزې
په رڼا ورځ د قام په لوټ او په تالان کړي مزې
اخر انصاف دے داسې ظلم چرته نه کېږي
تپوس چې نه کړې مشرې اخير په څه کېږي

(۴)

د خوار غريب دپاره ښار ناپرسان جوړ شه
د ډاکه مارو ورته ځائې په ځائې دوکان جوړ شه
څوک شه د لوږو تندو مړ څوک پکښې خان جوړ شه
اوس د دې خلقو په پيسه باندې ايمان جوړ شه
دا د الله رسول د لارې نه خلاف قيصه ده
دا د منصف په عدالت کې د انصاف قيصه ده

په وطن د غلې قحط دے نور به څه خورم
د ديدن خوارۀ دې راکړه چې يې وه خورم

زما لږ څه باندې هم گزاره کيږي
اصراف نه کوم د مړے مړے يې نه خورم

دې کې هيڅ ستا د وئيلو حاجت نشته
زۀ په ښه او بد پوهيږم خو ساړه خورم

د ناکامه راته دواړه يو شان ښکاري
ستا دلاسه که خوارۀ خورم که ترانښۀ خورم

د هغې پرهېزگارۍ نه مې توبه شه
چې ترې په بهانه د نمانځه خورم

د دنيا خلق چې وينمه مزې کړي
زۀ **اکمل** لېونے هسې ځان له زړۀ خورم

꧁꧂

اوس چې اکثر خلق خبرې کوي
زمونږ په سر خلق خبرې کوي
وايم د خير خبرې ولې نه کړي
دا چې د شر خلق خبرې کوي
بس خو چې اورمه نو بدې اورم
ښې به کمتر خلق خبرې کوي
بهر ته ځوک چاپسې اونه وتل
په پورې ور خلق خبرې کوي
په زړۀ مې ناڅاپه رااوربږي
چې د دلبر خلق خبرې کوي
مونږ چې سحر چرته يو ځائې اويني
ټول مازيګر خلق خبرې کوي
کمزوري ټول لاس په نامه ولاړ وي
چې زورور خلق خبرې کوي
ساده **اکمله**! اوس نازک دي حالات
ډير په هنر خلق خبرې کوي

رقيب د بدې ورځې خاندي ډېر پرې ښه پوهېږم
معصوم خو نه يم چې په دې خبرو نه پوهېږم

ما د حيا نه پوهه ځان ناپوهه کړے ورته
داسې نور کم خلق پوهېږي څنګ چې زۀ پوهېږم

بلا پسې شه نه پرې غم نه پرې ښادي کومه
په دې بې واره اوازونو د قارغه پوهېږم

زۀ د ښار نه د کليوالې علاقې پښتون يم
په کړلېچونو هم د سمې هم د غرۀ پوهېږم

څله مې ږدي په غرېدلو سترګو برغ لاسونه
نابينا نه يم په رڼا او په تياره پوهېږم

جانان که کلک په وعده پاتې شه بې لوظه نه شو
دنيا به اويني ملګرو په هر څه پوهېږم

دوه ژبې خلق دي **اکمله**! بروسه پرې نشته
پته يې لړي په خلۀ څه چې يې په زړۀ پوهېږم

اے خلقـه! زمـا ځـوک دي نـور بـه چاتـه اوړم راوړم
دې لارو دې کوځـو کـې خپـل اشـنا تـه اوړم راوړم

سـرۀ سـپين د چـا نـه وړم کليوالـو تنـګ نظـرو
د مينـې لېـونے د ديـدن غـلا تـه اوړم راوړم

پـه چغـو ژړېـدلے د عمرونـو غريـو نيـولے
پـه طمعـه يـې د خلـې يـوې خنـدا تـه اوړم راوړم

ويرېـږم د خپـل ځـان د ورکېـدو راسـره غـم د ے
تېـرو کـې يـې د ښـکلې مـخ رڼـا تـه اوړم راوړم

مـرهم کـه مـې د خـوږ زړۀ پـه زخمونـو رالـه کېـږدي
درمـان تـه اوړم راوړم مسـيحا تـه اوړم راوړم

**اکمله** ! خدائې دې خبر کړي سپے رقيب راته زمرے شه
تېـره تـوره پـه لاس دغـې بـلا تـه اوړم راوړم

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com


ستا حسن ته ښکلا بخښي سپرلے په تا مئين دے
دا ځکه خو جانانه هر سړے په تا مئين دے

حېران يمه د کوم کوم دښمنۍ به په سر اخلم
دې کلي کې خو هر خپل او پردے په تا مئين دے

محفل کې د مئينو چې ستا ذکر چرته راشي
رقيب پکښې د ټولو نه وړومبے په تا مئين دے

ويرېږم يا به ما او يا به تا د تېغه تېر کړي
بدمعاش مې د خپل کلي خونړے په تا مئين دے

ستا نوم زما په زړهٔ او زما نوم ستا په دېوال دے
زما د روح اشنا زما زړګے په تا مئين دے

کمزورے دے د چا سره د ضد کولو نه دے
**اکمل** خو ستا د مينې لېونے په تا مئين دے

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com

ورکي دې وعدې شي تکنړے مې پرې يقين شه
شپه لاړه سحر شه د سحر نه ماسپښين شه
زۀ ورته حېران هسې په غټو غټو ګورمه
ما پيرلے هار د بل د غاړې لونګين شه
بل به اخر څوک وي چې مې ډاډ زړګي له ورکړي
زۀ چې په ژړا شوم جانان سم د خندا شين شه
څه ساده سړے وم پرې د سر و ماله تېر وم
هسې تهمتي شوم دا کوم جرم په ما تين شه
خلق که دين نه وي د نيا ګټه خو وکړي
خدايه لېونړے **اکمل** د دين نه د سادين شه

❧

څو شپې وشوې چې پرله پسې تا په خوب کې وينم
اشنا هر يو انداز دې نا اشنا په خوب کې وينم
په ويښه باندې هم بيا د معصوم غوندې بوربنېږم
په څنګ کې درسره توره بلا په خوب کې وينم
جانانه خدائې دې خبر کړي څه چل دے يا څه چل کېږي

دا دومره حادثې چې خامخا په خوب کې وينم
چا بيا جمهوريت له جوړ چاړه په مرۍ راښکه
ملګري ټول خاموش دي مارشلاء په خوب کې وينم
**اکمله**! لېونيه په هر لور نفسي نفسي ده
ياران جدا جدا او وار خطا په خوب کې وينم

ماسره د مخکښې غونډې وس نه کوي
تېر مې شي جانان رانه په ترخ خبرې نه کوي
کله چې په برند نظر د لرې نه رااوګوري
ما کړې د بڼو په سوکو غوځ خبرې نه کوي
ځه ورته په شعر کې بلا خبرې وکړمه
دے راته په نثر کې واپس خبرې نه کوي
ټيک ده زۀ منمه چې خبرې ډېرې ښې نه دي
خلقه! دوه مئين خو څه عبس خبرې نه کوي
فرق لکه د شپې ورځې په مينه کې راغلے دے
څنګه به زمونږ په سر اولس خبرې نه کوي
ته ساده **اکمله**! په رښتيا لېونے شوے يې
روغ په شموزو کې د پيرس خبرې نه کوي

د چا خوا له د ورتللو مزه نشته
پردي ځۀ کيږي چې د خپلو مزه نشته

معلومېږي ساقي زهر پکښې ګډ کړه
په شرابو کې د څښلو مزه نشته

بې اعتباره دي بې لوظه بې وعدې دي
ملا پرې مه تړه د ښکلو مزه نشته

اوس سپرلي کې پېغلې هم نه ځي پټو ته
د شړشمو د غندلو مزه نشته

خوشې دشتې ځنګلونه ترې نه ښه دي
د پخوا غوندې د کلو مزه نشته

په دې خلۀ دې مهر اواهه **اکمله**!
د شعرونو د وئيلو مزه نشته

ꕥ

# ګلونو ماشومانو

دي ستاسو په لور سترګې د قامونو ماشومانو
ګلونو ماشومانو اې ګلونو ماشومانو

(۱)

عزت کوئ د مور او پلار سره د استاذانو
هم قدر احترام ادب د ټولو مشرانو
حاصل کړئ لوړ مقام په ښه خويونو ماشومانو
ګلونو ماشومانو اې ګلونو ماشومانو

(۲)

ګلونو تعليم وکړئ چې هم تاسو افسران شئ
چې يا انجنيران شئ يا له خپره ډاکټران شئ
پوره مو ارمانونه شه د زړونو ماشومانو
ګلنو ماشومانو اې ګلونو ماشومانو

(۳)

محنت کوئ ګلونو ځان ساتئ د عياشو نه
د خوشو ګرځېدلو د نشو او تماشو نه
اې ستورو د مور و پلار د قسمتونو ماشومانو
ګلونو ماشومانو اې ګلونو ماشومانو

(۴)

هم ډېره ضروري ده صفائي چې مو سپوا وي
بدن صفا، جامه صفا، خوراکه چې هم صفا وي
چې ژوند وي د مزو او د خوندونو ماشومانو
ګلونو ماشومانو اے ګلونو ماشومانو

(۵)

خدمت د قوم او ملک نه چې غافل نشئ هیڅکله
تاریخ به مو ژوند ے ساتئ نومونه تل تر تله
شه ستاسو هر کردار صفتونه ماشومانو
ګلونو ماشومانو اے ګلونو ماشومانو

(۶)

چې ناسته هم ولاړه هم مو تلل د سړیتوب وي
خبرې مو یو بل سره کول د سړي توب وي
عبس مه وهئ منډې په سړکونو معصومانو
ګلونو ماشومانو اے ګلونو ماشومانو

(۷)

خوراک کوئ په داسې طریقه چې ډېره ښه وي
ښودلې چې مور پلار او یا استاذ درته قائده وي
چې ښکار نه شئ د غیر د تهذیبونو ماشومانو
ګلونو ماشومانو اے ګلونو ماشومانو

# وادۀ

زمونږ د زړونو د تسکین وادۀ دے
نن د خیبر د ځوي ریښتین وادۀ دے

ګرانو ملګرو شاعرانو زما
رنګینیٔ اوشیندیٔ رنګین وادۀ دے

مونږ د شعرونو د ډیوو په رڼا
خلقو ته وښوده حسین وادۀ دے

د اپریدو په غیرتي خاوره کښې
تور د هیچا نه مني سپین وادۀ دے

د جمرود خلق په ځان نه پوهیږي
پیرونه کیږي په مشین وادۀ دے

نننیٔ شپه به روڼوو **اکمله**!
شعرونه اووایه شیرین وادۀ دے

# سهرا

نشې نشې خمار خمار وادهٔ دے
نن د ځلمي اياز ابشار وادهٔ دے
دلاور خان به ځنګ خوشحاله نه وي
چې يې د ښکلي برخوردار وادهٔ دے
ښې ورته رنګ په رنګ سهرې واچوئ
دا خو نژدې خوا کې د ښار وادهٔ دے
دي يې سرونه د حيا نه ښکته
سر وې شرمېږي د چينار وادهٔ دے
پکښې راغلي پښتانهٔ شاعران
شعرونه وائي وار په وار وادهٔ دے
مونږ په شعرونو به ماړه کړو خلق
دا به څوک نه وائي چې خوار وادهٔ دے
ملګرو اوشيندئ پرې ډېر ګلونه
چې په موسم کې د بهار وادهٔ دے
د سوکنو د ميا عمر کلي کښې
زمونږ د دوست زمونږ د يار وادهٔ دے

# ځمه د دې کلي نه

نور ورپکښې نه اوسمه ځمه د دې کلي نه
کږه په حیا کې چرته ورمه د دې کلي نه

(۱)

نور ورپکښې نه اوسمه زړۀ مې ترې موړ شوے دے
ننګ غیرت د خلقو د زړګو نه نچوړ شوے دے
اوس د پښتنو تاریخ هېر شوېدے زوړ شوېدے
څه به وایم ښار ناپرسان ترې نه جوړ شوېدے
څه خو قدرتي د ویرې مرمه د دې کلي نه
کږه په حیا کې چرته ورمه د دې کلي نه

(۲)

دې نه خو والله چې په ځنګل کې اوسېدل ښه دي
دې نه خو د بل د غلامۍ ژوند تېرول ښه دي
دغسې بې ننګو پښتنو نه خو مغل ښه دي
غوره دي پردي ترې نه دا چا ویل چې خپل ښه دي
بس دے نور دا ځان راټولومه د دې کلي نه
کږه په حیا کې چرته ورمه د دې کلي نه

(۳)

ټیک ده زۀ منم چې دا مې وه د پلار نیکۀ کلے
امن او انصاف چې پکښې وه یاد به ده ښه کلے
مونږه به بل کلے یادوه چې دا دے څه کلے
اوس به دا سې بل نه وي د دۀ غوندې سپېره کلے
خوند د ناستې نشته دے پاڅمه د دې کلي نه
کډه په حیا کې چرته وړمه د دې کلي نه

(۴)

ختم شریفان شو بدمعاشان یې مشري کوي
وینم چې د امن قاتلان یې مشري کوي
دې غضب ته ګوره غلۀ ډاکوان یې مشري کوي
واړه نابالغه هلکان یې مشري کوي
نوره مې د خېر نه کېږي طمعه د دې کلي نه
کډه په حیا کې چرته وړمه د دې کلي نه

(۵)

زۀ ساده سړے د دې قیصو نه څه خبر ومه
زۀ د ایمان خرڅو پښتنو نه څه خبر ومه
زۀ د سازشونو د دهوکو نه څه خبر ومه
زۀ د خود غرضو د جرګو نه څه خبر ومه

ما خو وې دا خپل نصيب به خورمه د دې کلي نه
کله په حيا کې چرته ورمه د دې کلي نه

(۲)

نه کېږي زما ګزاره نوره په دې کلي کښې
ګرځم چې په شته کور کې بې کوره په دې کلي کښې
ومې ژړل د ېر په زوره زوره په دې کلي کښې
پاک پاتې کېدے نشم د توره په دې کلي کښې
ورک به شم **اکمله**! بې موسمه د دې کلي نه
کله په حيا کې چرته ورمه د دې کلي نه

ꕥ

يوه ګړهۍ مې نه هېرېږي جانان
ملګرو بيا بيا مې يادېږي جانان
ګرانه ده څنګه به ترې صبر شمه
زما په سترګو کې غړېږي جانان
چرته چې ذکر شوک د ښکلو وکړي
په زړهٔ مې سم رااورېږي جانان
هلته فضا شي سپرليزه غوندې
په کومه سيمه چې تېرېږي جانان
**اکمله**! څکه احترام يې کوم
د زړهٔ په کور کې مې اوسېږي جانان

ꕥ

په والله که نور دچا راسره غم دے
ښکلیه یاره! بس یو ستا راسره غم دے

معلومېږي حال د زړهٔ زما د رنګه
هسې نه ویم خامخا راسره غم دے

هیڅ پروا مې په دې خپله ژړا نشته
ستا د سترګو د خندا راسره غم دے

د دنیا په خوشحالۍ مطمئین نه یم
څه به وایمه پېدا راسره غم دے

پښتانهٔ ترې نه په خپله مخالف دي
د دې خوارې پښتونخوا راسره غم دے

چرته سر لکه مجنون په غرونو نشي
د **اکمل** د لېونتیا راسره غم دے

اوس اعتماد اخر په چا وکړم
په کوم طبيب د رنځ دوا وکړم

کوي بدل کې يې جفا راسره
زۀ چې د چا سره وفا وکړم

د خندا شين شي سم په شا اوړي
فرياد چې مخکښې د اشنا وکړم

ماته يې ډېر عمر خېرې کړي دي
پرېږدۀ چې ښکلو ته دعا وکړم

د خلقو مخکښې د ناکامه خاندم
کله چې ځان له شم ژړا وکړم

**اکمله!** کلے هغه کلے نه دے
اوس به ترې کډه خامخا وکړم

پردي خو پرېږده خپل هم د چا تپوس نه کوي
ښادي لا څه که چې په غم د چا تپوس نه کوي

بيا د انسان او د حيوان تر مينځه فرق څه دے
چې په سختي که بنيادم د چا تپوس نه کوي

مونږه يې هسې صفتونو باندې نه مړېدو
اوس معزز او محترم د چا تپوس نه کوي

د لرو کلو فاصلې به درته نه يادوم
خوارۀ ملګري د يو چم د چا تپوس نه کوي

چې په چا پرېوته متل دے په هغو پرېوته
ګيله دې نه کړي نور عالم د چا تپوس نه کوي

غوره به دا وي چې دا زړۀ ترې نه راونغاړو نور
**اکمله**! ښکلي په قسم د چا تپوس نه کوي

ښائست که لکه تخم غوړولے دے جانان
ما هم د زړۀ په للمه کښې کرلے دے جانان

هیڅ قېد په خلقو نشته چې څه وائي اجازت دے
ملګرو په سر سترګو مې منلے دے جانان

په ژبه د اقرار تصدیق مې کړېدے په زړۀ کښې
دا وایم د هر چا نه راته ښکلے دے جانان

اوس ګرانه ده چې صبر د ناصح په نصیحت شم
قدرت مې په خمبیر کښې اغږلے دے جانان

زما پشان یې ډېر داسې د مینې لېوني دي
د خلقو په دې زړونو مې ویشلے دے جانان

دے وخت د ملاقات کښې خو څوک مه راولے خدایه
دلاسه مې نیولے اودرولے دے جانان

محفل کښې یې د نوم په اورېدو خلق حېران شه
**اکمله**! په غزل کښې مې ستائیلے دے جانان

دې ژړا وير ماتمونه ته دې خيال د ے
دې قتلونو دې مرګونو ته دې خيال د ے
پخوا يو د ادم ځوئې د رور قاتل وۀ
نن د هر سړي جرمونو ته دې خيال د ے
چې په مونږ د شين اسمانه راغورزېږي
د اورونو تندرونو ته دې خيال د ے
فصل ځه زمونږ سرونه يې مېده کړل
د شنو کاڼو بارانونو ته دې خيال د ے
ښار په ښار کلي په کلي چوي بمونه
د بارودو دې بويونه ته دې خيال د ے
عجيبه ده هم مره کېږو هم پړه کېږو
دې روانو سازشونو ته دې خيال د ے
انسانان لکه ښاروي پکښې خرڅېږي
دې مېلو ته بازارونو ته دې خيال د ے
چې يې څوک پېژند ګلو کولے نشي
ځائې په ځائې پرتو لاشونو ته دې خيال د ے
زۀ يې ستا ، ته يې زما د سر قاتل کړې
دې وهمونو ګمانونو ته دې خيال د ے
چې انجام يې تباهي ده د قامونو

موجوده مصلحتونو ته دې خيال دے
سوداګر پسې ډالرو په لاس ګرځي
د سرونو نيلامونو ته دې خيال دے
سحر اوشي په کچه غرمه ماتېږي
دې وعدو ته دې لوظونو ته دې خيال دے
مينه نشته نفرتونه ترې خورېږي
د يارانو محفلونو ته دې خيال دے
اسلام نه اسلام اباد ورپکښې ستائي
دې وعظونو تقريرونو ته دې خيال دے
ښه يې اورو په مطلب يې نه پوهېږو
دغه ګڼو اوازونو ته دې خيال دے
چې د مړو په ځائې ژوندي پکښې خښېږي
دا په لارو کې قبرونو ته دې خيال دے
کله يو رنګ کله بل رنګ کې ښکاره شي
د نرخونو عذابونو ته دې خيال دے
چې غل بري کړي کوتوال غريب پانسي کړي
د انصاف عدالتونو ته دې خيال دے
د ښاروو په ځائې بنديان پرې تکړې کېږي
دې چړو ته دې تبرونو ته دې خيال دے
زمونږ اوښکې خولې وينې يې رنګونه
د بادارو محلونو ته دې خيال دے

# سید راحت شاه

*سید راحت شاه زمونږ د کلي یو لوي عالم دین وه زما استاد وۀ. دا مرثیه مې د هغه په مړینه لیکلې ده.*

د علمونـــو ســمندر وې حقیقــت کښې
لاســره د دې مــاهر وې پــه حکمــت کښې
ژونـد دې وقـف وه د خلقـو پـه خـدمت کښې
شـک دې نشـته د ے پـه مـرګ د شـهادت کښې
تـا دنیـا لـره د علـم دولـت ورکـه
تـا هـر چـا لـه د مـذهب تربیـت ورکـه

(۲)

تـه دنیـا کـې د دنیـا ځینـې ویـزار وې
تـه پـه حقـه اسـلام د بـاغ مالیـار وې
تـه زاهـد وې متقـي وې پرهېزګـار وې
د الله پـه مینـه مسـت هسـې سرشـار وې
د قضـا ملائیکـې څـومره تـادي وکـړه
چـې د کـوره یـې ډاکـه د سـعدي وکـړه

(۳)

د عـالم مـرګ واقعـي وي د دنیـا مـرګ
دا دوېـم محـرم ښـکاري راتـه سـتا مـرګ

دا منمــه چــې راځــي بــه پــه هــر چــا مــرګ
کـــړې د مخـــه د جهـــان ځينـــې فنـــا مـــرګ
ســـل دې اُمـــره يـــو دې مـــه مـــره دا متـــل دے
تـــالا شـــوے ستا نـــه پس د ژوند محفـــل دے
تـــه د وخـــت تـــورو تيـــرو کـــې بـــل مشـــال وې
تـــــه هنـــــداره د جـــــلال او د جمـــــال وې
چـــې مثـــال يـــې چرتـــه نشـــته هغـــه لال وې
لکـــه تخـــم د هـــر چـــا پـــه زړهٔ کـــې نـــال وې
پـــه مـــرګ ســـود نـــه وي د چـــا خـــو حقـــه لار ده
دا هـــر چـــا بانـــدې راتلـــونکې وار پـــه وار ده

(۴)

پـــه ګـــور نـــور شـــې تـــور لحـــد دې چراغـــان شـــه
پـــه نصـــيب دې د جنـــت حـــورې غلمـــان شـــه
پـــه مـــزار دې رحمتونـــه د ســـبحان شـــه
ســـوال جـــواب صـــراط ميـــزان درتـــه اســـان شـــه
د **اکمـــل** بـــه هرګـــز هيـــر نشـــې د زړهٔ نـــه
اے پـــه مـــونږه د مـــور پـــلار غونـــدې مئينـــه

# چشتي مې نه هېرېږي

<u>*دا نظم مې د ګل رازق چشتي په مرګ ليکلے وو او د هغه د څلوېښتې په موقعه مې په يوه درنه مشاعره کې اورولے وه. ۲۵ / ۱۲ / ۱۹۹۱ ء*</u>

سبا بېګا زما په سترګو کې غړېږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي
په هر ساعت کې راته مخکښې مخکښې کېږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

(۱)

د پښتو ژبې يو شاعر، اديب، ليکوال وه هغه
زما په خيال خو د خپل دور يو خوشحال وه هغه
خلقو منمه يو شخصيت کمال کمال وه هغه
په تاريخونو کې به عمر له ياد ېږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

(۲)

د کونډو رنډو مظلومانو سره مل وه چشتي
د هر ظالم په سينه خښ لکه د شل وه چشتي
دې فرعوني معاشرې لره اجل وه چشتي
نور نه ډاکو وه نه قاتل سمګلر نه غل وه چشتي

د قام خادم وؤ خپل پردي پسې ژړېږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

(۳)

تا نه تحصیل به یې اشنا هم نا اشنا له کول
بغېر لالچه خدمتونه یې هر چا له کول
پټ چا ان نه دي هم یې ماله هم یې تا له کول
ده د پښتو کارونه ننګ غیرت حیا له کول
پوهه شوم دے په خپل عزت سړے قتلېږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

(۴)

د باچا خان بابا د فکر یو ژوندے پښتون وۀ
یو ننګیالے یو توریالے پښتون وۀ
دا حقیقت دے زړورولے پښتون وۀ
مونږه پرې دا فخر کوو چې یوسفزے پښتون وۀ
خو خبر نه وم چې به زر رانه بېلېږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

(۵)

که د مراز شاني عبدل محمد رو وه چشتي
که د اقبال محمد علي د بوال د کوره چشتي

نو د ادب د ګلستان مالیار غمخور وه چشتي
د دې تمامې پښتونخوا د سترګو تور وه چشتي
شاعران ځکه یې په قبر راغونډ یږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

(۶)

څنګ چې حسین سره په دشت کربلا اوشو
ده سره هم دا هسې ناشوني ناروا اوشو
په ظلم مړ دے زیاتیات ورسره دا اوشو
ده چې شعرونو کې څه وې هغه رښتیا اوشو
اوس خامخا به په چشتي شهید یادیږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

(۷)

راځئ چې اوشیندو ګلونه د چشتي په قبر
بل کړو د مینې مشالونه د چشتي په قبر
ملګرو اووایو شعرونه د چشتي په قبر
چې پېش کړو خپل عقیدتونه د چشتي په قبر
په څه وئیلو به زمونږ نه خوشحالیږي
خلقه! چشتي مې نه هېرېږي

# بابا غزل

<u>دا څو شعرونه مې د حمزه صېب په مړينه ليکلي وو.</u>

چې پرې اباده وه دنيا د غزل
يوړه اجل هغه بادشاه د غزل
د سمندر غوندې بابا د نظم
ورته وئيلے دے بابا د غزل
دې نه هيڅوک انکار کولے نشي
حق يې په حقه کړو ادا د غزل
سپرلے به څنګه د خيبر نه لاړ شي
سپړدې غوټۍ لرې بلا د غزل
چې يې د خپلو وينو سرۀ ورکړې
خور دے ښائست په پښتونخوا د غزل
ناظر خاطر وه که خيبر اپريدے
په رنګ کې رنګ وو د حمزا د غزل
ورته حېران ګوته په خلۀ پاتې وو
چا چې په سر غوښته دعا د غزل
ناز به پرې څنګ پښتو ادب نه کوي
هره وينا يې وه وينا د غزل

# خېبر افريدے

## دا نظم مې د خېبر افريدي په مرګ ليکلے وو

خوږو ملګرو عجيبه غونډې سړے وه خېبر
په روغو خلقو کې د مينې لېونے وه خېبر
د لر و بر پښتنو لويو هم وړو پېژندو
په ادبي دنيا کې خور لکه سپرلے وه خېبر
په خوږه ژبه به يې هرې ژبې خوند کولو
خېبرے څه چې پېښورے هم يوسفزے وه خېبر
په فاصله باندې د يو د بله ډېر لرې وو
تړون د زړهٔ د نومو لرو راته نزدې وه خېبر
بېدارول يې اودهٔ خلق د شعرونو په شور
غږ جرس د پښتنو د قافلې وه خېبر
د حقيقت نه که څوک خپلې سترګې نه پټوي
د دې تمامې پښتونخوا د سر پټکے وه خېبر
چا ترې د لوئې جدايئ په وخت پښتنه اوکړه
لکه د ګل غونډې په پټه خلهٔ مسکے وه خېبر
متل دے وائي سل دې اومره ولې يو دې مه مره
محفل به ګرم وه چې چرته به پکښې وه خېبر

کله که هم به څه د ضد پښتو خبره راغله
په ځان له تن به بیا د هر چا نه وړومبے وه خیبر
په غم ښادۍ کښې به شریک وه د یارانو سره
د خوند دپاره کله مالګه مرچکے وه خیبر
مونږ پرې ماتم نه کوو مونږ پرې مرثیې نه وایو
د ښو شعرونو به کمال سره ژوندے وه خیبر

ⴰⴰ

چې پیدا کړے یمه خدائې په زمانه د ښکلو
څنګه به نه کوم ملګرو یارانه د ښکلو
که څه خبره د ښې بدې مینځ کښې وي که نه وي
زۀ د دیدن دپاره ګورمه بهانه د ښکلو
د مجبورۍ نه حال د زړۀ په خلۀ وئیلے نشم
په کاڼو لړمه په چم کښې روزانه د ښکلو
ویښته مې سپین شو د پینځوستو کالو واورېدمه
پوهه لا نه یم د خبرو په معنیٰ د ښکلو
که څوک پرې ښه وائي که بد وائي پروا نشته دے
د **اکمل** خوښه ده تمامه خېلخانه د ښکلو

ⴰⴰ

# شېر علي باچه انور

*دا شعرونه مې د شبر علي باچا انور د کليزې په موقعه د هوتي مردان په يو لويه مشاعره کې واورول.*

ګرانه ننګياليه توريالي باچه
هېر به رانه نشې شبر علي باچه

مونږ دې سپېره خزان ته پرېښودو
يو دې ړل د ځان سره سپرلي باچه

نن محمود خان بې لتا نيمګړے دے
شي په بل چا يې تسلي باچه

تاپسې د کوئيټې پښتانۀ ژاړي
اوس به ځان له څوک هلته بلي باچه

اوس به په زرګونو خلقو ډک نشي
ستا په تلو چې کوم ځائې شو خالي باچه

ډېره د غلې د قحطه سخته ده
ستا د ديدنونو قحط سالي باچه

زۀ يې نوابان او خانان څه کوم
ته وې د دې سيمې شېخ ملي باچه

درس دې د يووالي ورکوو ورته
وو که پښتانۀ ټولي ټولي باچه

نوم د کالا باغ چې چا اغستے دے
تاپسې راغستے کودالي باچه

ډېر دي باچاګان خدائې دې ژوندي لري
ته وې پکښې ځان له مثالي باچه

بوي خو به راځي ستا د غيرت ترې نه
کرم دې په قبر کشمالي باچه

# راحت علي شهيد

دا مرثيه ما د راحت علي په مرګ ليکلې وه د عبدالنبي په فرمائش راحت علي د ګړهي کپورې د فريدون ځوئې وو د مردان اډې سره خوا کې د بم په دهماکه کې سره د ډېرو کسانو شهيد شوے وو په ۱۱ اګست ۱۹۸۷ء د هغوي د څلوېښتې په موقعه مې اورولې وه ۲۲ / ۹ / ۱۹۸۷ء
هدايت الله، مراد علي، لياقت علي او ظاهر علي يې رونړه وو ، سليمان زوې وو چې ماشوم پاتې شه.

پـــه دهماکـــه کـــې دمــــردان شـــهيده
راحـــت علـــي د ګـــل پـــه شـــان شـــهيده
مـــرګے خـــو شـــته دے پـــه هـــر چـــا بـــه راځـــي
هـــم پـــه بادشـــا هـــم پـــه ګـــدا بـــه راځـــي
خلاصـــے تـــرې نشـــته خامخـــا بـــه راځـــي
ولـــې ســـتا مـــرګ وه د ارمـــان شـــهيده
راحـــت علـــي د ګـــل پـــه شـــان شـــهيده

(۲)

خلـــق کـــه وائـــي چـــې دا کـــم تـــاريخ وۀ
اتمـــه مياشـــت يولســـم تـــاريخ وۀ
دا پـــه رښـــتيا د لـــوې مـــاتم تـــاريخ وۀ
ســـوات تـــه د کـــوره شـــوې روان شـــهيده
راحـــت علـــي د ګـــل پـــه شـــان شـــهيده

(۳)

د خپله کوره چې سحر اووتې
په نيت د سوات د لوئې سفر اووتې
مردان اډې نه چې بهر اووتې
ناڅاپه اوچاودل بمان شهيده
راحت علي د ګل په شان شهيده

(۴)

چا پورې لاس ښه په د چا سر نه وۀ
د چا د لاشه څوک خبر نه وۀ
هيڅ د کتو دغه منظر نه وۀ
بې ګناه مړه شول مظلومان شهيده
راحت علي د ګل په شان شهيده

(۵)

کور ته چې ستا کله خبر راغے
خبر دې څه وۀ خومحشر راغے
غم په هر چا لکه د غر راغے
ټولو راکښېنو دل په ځان شهيده
راحت علي د ګل په شان شهيده

(۶)

هــــدايت الله مــــراد علـــي پـــه چغـــو
هـــم بـــه ژړل لياقـــت علـــي پـــه چغـــو
پـــلار ســـره وه ظـــاهر علـــي پـــه چغـــو
ځـــان درتـــه وژنـــي شـــاګردان شـــهيده
راحـــت علـــي د ګـــل پـــه شـــان شـــهيده

(۷)

ســـــتا د محفـــــل واړه يــــاران ژاړي
پـــه چغـــو چغـــو پـــه ارمـــان ژاړي
عبـــدالنبي شـــلوي ګريـــوان ژاړي
قربـــانوي لـــه تانـــه ځـــان شـــهيده
راحـــت علـــي د ګـــل پـــه شـــان شـــهيده

(۸)

دا يـــو معصـــوم بچـــے دي چاتـــه پرېښـــود
دا دي بـــې بـــې كـــه دي دادا تـــه پرېښـــود
كـــه دي غمونـــو د دنيـــا تـــه پرېښـــود
ســـلګو نيـــولے ســـليمان شـــهيده
راحـــت علـــي د ګـــل پـــه شـــان شـــهيده

(۹)

تاسره نور هم ډېر کسان راحته
په دردناک مرګ مړه شو خواران راحته
بلا واړه زاړه ځوانان راحته
شه مو نصیب حورې غلمان شهیده
راحت علي د ګل په شان شهیده

(۱۰)

دا چې په خوار اولس بمان وروي
دا نه سیکهان نه انګرېزان وروي
په مونږ یې خپل مسلمانان وروي
ډېر شته سنګدله ظالمان شهیده
راحت علي د ګل په شان شهیده

(۱۱)

سېوا د دې نه څه وئیلے نشم
په تا د سوز ابیات لیکلے نشم
ولې هرګز دې هېرولے نشم
په ما **اکمل لېوني** ګران شهیده
راحت علي د ګل په شان شهیده

# ماجد

عبدالماجد زما زوئې زما په ږېره کې سپين وېښته لګېدلي وو چې په ۳ جنوري ۱۹۹۸ء کې پېدا شه او په ۲۷ / ۱۱ / ۱۹۹۸ء وفات شه. حکمت خان یې مشر رور وو او ولي يې د تره زوئې وو.

څه به دې وايم د بې وخته جدائې ماجده
زمونږ يې ورانې کړې د زړونو ودانې ماجده
ته که معصوم وې غم دې دروند وه لکه غرونه غرونه
رانه يې اوتروړل خواږهٔ د زندګۍ ماجده
زهٔ چې به کور ته کله سترے د روزګار راغلم
ستا په ليدلو به دمه شوم ګل غوټۍ ماجده
خور به دې وې اوس به بابا مونږه له راکړي روپۍ
تا له به واخلم په دوکان کې پرې مامۍ ماجده
چې به دې ترونه په سحر کې ستا ليدو له راغلل
تا به خورې کړې ورته زر خپلې چاچۍ ماجده
لکه د زرکو به مو يو بل ته ټوپونه وهل
په تا نيمګړې دا نور شو له جوړې ماجده
راتلل دې داسې خوشحالي وه لکه سل اختره
تلل دې قيامت وه نمړېدې د زړهٔ مانۍ ماجده
مونږ د خپل وس مناسب ستا دارو درمل هم وکړه

خو په تا هيڅ اثر ونه کړو دوائي ماجده
ستا په قضا د خدائې رضا وه مونږ به صبر کوو
د برداشت کله وه دا ستا د مرګ سختي ماجده
زمونږ په زړونو کې صفا لکه چړې خښېدې
د مور په غېږ کې ستا وړې وړې سلګۍ ماجده
لکه مارغان د چا د لاسه نه څه اوتښتوي
دغسې يوړلې چپو د بيمارۍ ماجده
ته بختور يې د حساب کتاب د غمه خلاص يې
پرتې دې مونږه ته بلا سختي ګاټۍ ماجده
که به په غېږ کې حکمت خان که به ولي واغستې
تا به شروع کړې خوشامندې مرادۍ ماجده
چې د ملګرو سره سېل د جنتونو کوې
او مېره مونږ له د اعلىٰ درجې ځۍ ماجده
نور مې هم ډېر بچي مړه شوي خو هېر شوي مې دي
ته به مې هېر نشې که تېرې شي صدۍ ماجده
روستو پېدا شوې خو د مرګ په لاره مخکښې لاړې
دغه ترتيب دے د ميراتې زندګۍ ماجده
که خبر وي دغلته زمونږه شفارست به کوې
اے د مور پلار د زړګي زخم له پټۍ ماجده

☙❧

# غزل

ژوند لکه وجود کې چې د سا نه بغېر نه کېږي
داسې ګزاره مې د جانانه بغېر نه کېږي

حورې وي غلمان به وي جنت کې فرښتې به وي
هيڅ يې ښکلې والې د انسانه بغېر نه کېږي

ولې ملا دومره د دنيا مخالفت کوې
غم د اخرت خو د دنيا نه بغېر نه کېږي

څو چې لکه وينه د سرو شونډو د زړۀ په دشته اوره
للمو کې فصلونه د باران نه بغېر نه کېږي

ملک ازادول به د سرونو قرباني غواړي
ګټه خو ملګرو د تاوانه بغېر نه کېږي

صبر اخر خنګه به په ژوند د مئينتوب به شم
خلقه! شاعري د مئينتابه بغېر نه کېږي

ډېر که په وطن مې څوک خوارۀ نومونه کېږدي
سود پرې د **اکمل** د پښتونخوا نه بغېر نه کېږي

# د نظره به شي

هر چاته مه خانده جانانه د نظره به شي
زړۀ ته راتېره په ما ګرانه د نظره به شي
مورړ يې لا څه کړے چې دا خلق وړې هم نه زغمي
درته به پېښه شي د ځانه د نظره به شي
چا هوښيارانو د ښه زړۀ نه دا متل کړېدے
زلمو مونډلې د خندا نه د نظره به شي
نن د ښائست په نشه مست يې په ځان نه پوهېږې
سبا به ډېر يې پښېمانه د نظره به شي
وړ ستړګې خلق دې سړے په سترګو سترګو کې وړي
اے د **اکمل** ياره نادانه د نظره به شي

## غزل

توبه توبه په تېره تېره جانان
ياد چرته هم نه کړم په هېره جانان
سېوا له دې نه به نور څه اوايم
وفا کړي لږه جفا ډېره جانان
بس دومره ده چې بې جانانه نه يم
ښه ده په شتو مې شته له خېره جانان

ملګرو راشئ بې نښتې مې وژني
لاس د رقيب نه کړه چاپېره جانان
**اکمله**! نور څوک به مې څه یادوي
خپله چې وبستے یم د شمېره جانان

ﷺ

هله زر کوه جانانه سا مې لاړه
په سلګو کې راکړه راته غاړه
په سرو شونډو دې شروع سورت یسین که
ما دپاره بخښنه د خدایه غواړه
چې روښانه مخ د خدائې حضور ته لاړ شم
په کفن مې یو څو اوښکې تویې که ژاړه
جفاګانې به دې ټولې درته معاف کړم
چې دا یو نېکي دې وي راته ولاړه
زړۀ به چرې د **اکمل** ورته سپین نشي
ما او تا چې دلته څوک بېلوي دواړه

ﷺ

# سره جنډا

سر پرې ورکوو زمونږ د لويو ورو خوښه ده
مونږه پښتانۀ يو دغه سرۀ جنډا مو نښه ده

(۱)

مونږه پښتانۀ يو زمونږ خوښه ده دا سرۀ جنډا
نشته دے يوه د دې پشان قوي کره جنډا
مونږه اودرولې په خيبر او تاتره جنډا
دا راته د پل غيور نيکۀ نه پاتې برخه دۀ
مونږه پښتانۀ يو دغه سرۀ جنډا مو نښه دۀ

(۲)

دا د رورولۍ او اخوت او محبت جنډا
دا د پت ښيګړې وفا ننګ تورې غيرت جنډا
دا ده د هر وخت د انقلاب د علامنت جنډا
دا د دې نړۍ د هر شهيد د کفن تخته ده
مونږه پښتانۀ يو دغه سرۀ جنډا مو نښه ده

(۳)

دا جنډا چې لاس ته کړه سن تي کې بابا زمونږ
ټولو پښتنو ورسره اوتړله ملا زمونږ

تېښته يې شروع کړه دښمن نه کاته په شا زمونږ
ګوره د انګرېز غوندې جابر ترې کړې مخه ده
مونږه پښتانۀ يو دغه سرۀ جنډا مو نښه ده

(۴)

دې جنډا کې ښکارې د بابړې او ټکر وينې
دې کې کوي پړق د پېښور او هشنغر وينې
دې کې د مردان د مارچ د لوئې بابا د سر وينې
دا مې د زړګي د هر پرهر د پاره پخه ده
مونږه پښتانۀ يو دغه سرۀ جنډا مو نخښه ده

(۵)

کوم داسې کُجا دے چې د دې مقابله اوکړي
سر اوخوري اخر چې دا جنډا په چا حمله اوکړي
وخت به ډېره ژر اکمله خپله فېصله اوکړي
دا لکه د تورې د ظالم په سينه خښه ده
مونږه پښتانۀ يو دغه سرۀ جنډا مو نښه ده

# مجبوري

دا د اوس نه، نه ده د پخوا نه مجبورۍ مې ده
غرېږ کولې نه شم د حيا نه مجبورۍ مې ده

دې غضب ته ګوره پړې خبرې ته دې ورته وايم
اے زما د زړهٔ د کلي خانه مجبورۍ مې ده

پېټې چې په سر د تهمتونو الزامونو وړم
ګرانه ده خو څه اوکړمه ګرانه مجبورۍ مې ده

ټوله سرمايه د ژوند ې ستا نه صدقه کړله
خلق وائي سانه زهٔ ويم دانه مجبورۍ مې ده

پښو لګېدو ته په زخمونو هم سمېږم نه
ځان دې رانه هېر که خپله ځانه مجبورۍ مې ده

کله کله داسې کېفيت په ما حاوي شي چې
شين شم په ژړا کې د خندا نه مجبورۍ مې ده

ما درسره سم سپين بېړے ځان ورړوکے کړېدے
په د لېوني **اکمل** جانانه مجبورۍ مې ده

ماته ګناه ده ما په خپله مشهور که جانان
ځان ته مې تریخ بل ته مې خوږ لکه انګور که جانان

اوس چې یې ځوک ویني په مخه ترې چکونه وهي
لکه د چرګ مې په سوچه غوړو کې سور که جانان

په هره لاره چې تېرېږم طالبان مې ولي
ماته خپل کلې سم پنج پیر او شاه منصور که جانان

زۀ یې د هاړ غرمو ته دغسې په ډاګه پرېښوم
په نورو خلقو لا د مینې سورې ګور که جانان

د زړۀ په وینو مې لیکلې ورته مخکښې کېښود
هغه درخواست مې بې کتلو نامنظور که جانان

د ماهرانو حکیمانو نه مایوسه شومه
علاج یې نشته زما زړۀ داسې رنځور که جانان

**اکمله!** دا ځل به خبره سپینوم ورسره
که خدائې په وینه یا په خوب کې راحضور که جانان

چې د قسته مې جانان راپورې خاندي
خامخا به رقيبان راپورې خاندي
اوس د ناستې جوګه نه يم په محفل کښې
خپل ملګري او ياران راپورې خاندي
که د غم غلطولو په خيال ورشم
لېوني د بيابان راپورې خاندي
د مجنون غوندې د خپلو پردو بېل شوم
د ځان هم نه شوم جهان راپورې خاندي
عاقبت به ترې نه کړه چرته يوسم
چې د کلي ماشومان راپورې خاندي
داسې پرېوتم د خلقو د نظره
پردي څه کې چې خپلوان راپورې خاندي
خدائې زده دا راباندې څه اوشو **اکمله!**
ننګ غيرت پښتو ايمان راپورې خاندي

د جار وتلو نه دے سم لېونے سپے دے رقیب
الله دې خبر کړي مات مې نه کي راپسې دے رقیب
زما په ضد چې یې جانان په صفت نه مړېده
ما ویل کوم داسې د پیر بابا نمسے دے رقیب
که د ناکامه په خلۀ هېڅ ورته ویلے نه شم
په زړۀ مې نه ځائېږي چغې کړم پردے دے رقیب
زۀ ورته توان د مخامخ کتلو چرته لرم
راچوکه کېږي مې په سترګو کې ازغے دے رقیب
د خوښې نه دے عجیبه غوندې کې شے دے رقیب
د عاشقانو د سر درد د زړګي سوے دے رقیب
د ده په ژوند به دوه مئین خوشحالي څنګه اوکړي
په تندر اولګه د سور کافر بچے دے رقیب
بچ به ترې نه شمه د شپو په رونېده **اکمله**!
زما د کلي د یو چم د یو کوڅې دے رقیب

ꕥ

دېته به څوک ځنګ اوائي ښکلے پسرلے
راغے په سرو وينو لمبېدلے پسرلے
مري پکښې تنکۍ تنکۍ غوټۍ سره د ګلو
ورک شه دا سپېرۀ او سر خوړلے پسرلے
هېڅ د خوشحالۍ يې هم د ځان سره رانه وړل
ماله ماتوي د زړۀ غندلے پسرلے
څه به کوو خلقو ته شکوې شکايتونه
مونږه ژړوي مونږ خندولے پسرلے
چرته چې تپوس د چا نه اوکړم راته وائي
نه چرته کې تلے نه راغلے پسرلے
نه يې د اوږمې نه يې زغملے شو بادونه
داسې به هېچا نه وي ليدلے پسرلے
نخښې يې **اكمله**! د خزان نه کړې بدلې
زۀ دا پسرلے وګڼم ولې پسرلے

غلے ښه يم په وېنا ګنهګارېږم
که څه وايمه لا ګنهګارېږم

په رښتياؤ خپل پردي راسره نخښلي
په دروغو د الله ګنهګارېږم

د قاضي په بې انصافه عدالت کښې
په فرياد او په ژړا ګنهګارېږم

د رقيب که هيله نوم په بده اخلم
غضب دادے د اشنا ګنهګارېږم

اور دې پورې په دا هسې رنګ پښتو شي
چې په نوم د پښتونخوا ګنهګارېږم

داسې حال کې به څوک څه وائي **اکمله**!
بې قصوره بې ګنا ګنهګارېږم

سیاستونو دوستانې د پښتنو ورانې کړې
ډلو پرو پښې رشتې د پښتنو ورانې کړې
داسې هوا د مغربي تهذیب راواولتله
چې د پټکو نه یې شملې د پښتنو ورانې کړې
لیډل یې څه چې نوم یې اورمه بې خوده شمه
دې پښتنو څو نمونې د پښتنو ورانې کړې
د نابالغه هلکانو تنظیمونه جوړ شو
نقصان یې دا چې یې جرګې د پښتنو ورانې کړې
قلم یې مات شه او د لاس ګوتې یې اورژېږه
چې د تاریخ نه یې نامې د پښتنو ورانې کړې
ثقافتونه کلتورونه مو تالا والا شو
خلقو درنې لوئې حجرې د پښتنو ورانې کړې
**اکمله!** بلې کړو د چا په مزارونو ډیوې
اوس یې له سره ادیرې د پښتنو ورانې کړې

ᏣᏰᏱ

سوچ مې اونه کړو ما خوښ کړے په توکل دے جانان
اوس مې د سر د قاتلانو سره مل دے جانان

بلا تېره تېره ازغي راته په زړۀ خښنوي
ما خو وې ګل زما د خنې د اوربل دے جانان

څه اوکړم خدايه وس مې نه رسي بې وسه يمه
زما چې بدي شي د هغو سره تل دے جانان

په سپينه خوله راته خوږې پستې خبرې کوي
موقع ته ګوري پټ په زړۀ کې راته غل دے جانان

زما په هره قربانۍ باندې يې پښې راښکلې
نن چې ښائست د غير غمازو د محفل دے جانان

**اکمله!** نېغ ورته کتے نشم بوږنېږمه زۀ
اوس د پخوا پشان جانان نه دے بدل دے جانان

يو خوا پښتو بل خوا جانان دے خدايه څه به کېږي
مقابله ده امتحان دے خدايه څه به کېږي

بل خوا رقيب دے په هېڅ شان د جار وتلو نه دے
راسره سم په ضد روان دے خدايه څه به کېږي

دومره د مينې په انجام د ښکلو پوهه شومه
سود پکښې نشته دے تاوان دے خدايه څه به کېږي

يک تنها ناست يم څوک مې چغې فريادونه ناوري
دشته ده خوشې بيابان دے خدايه څه به کېږي

چې دوست دښمن خپل او پردے پکښې څوک نه پېژني
په داسې حال کې خو ژوند ګران دے خدايه څه به کېږي

يوړم په مخه د وهمونو ګومانونو تېرو
**اکمل** په يو دوه کې حېران دے خدايه څه به کېږي

www.urdukutabkhanapk.blogspot.comom


د مغرور اشنا دیدار ته
چې ځنګ لاړم داسې راغلم
زړۀ مې نه کېږي بل وار ته
چې ځنګ لاړم داسې راغلم

نن مې بیا دواړه لاسونه
په ازغو سوري سوري شو
په سپرلي کې هم ګلزار ته
چې ځنګ لاړم داسې راغلم

زړۀ مې نه غوښته ملګرو
ما سودا پکښې ونه کړه
د دې ښار هر یو بازار ته
چې ځنګ لاړم داسې راغلم

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com

تږے تږے نا امیده
ترارې ترارې وچې شونډې
هغه شوم ساقي میخوار ته
چې څنګ لاړم داسې راغلم

یو نظر یې د وفا هم
خلقه! بیا په ما ونه کړو
ستم ګر او جفا کار ته
چې څنګ لاړم داسې راغلم

څه به جوړ شمه یارانو
زهٔ اکمل د لېونتوبه
په کلونو پس هم یار ته
چې څنګ لاړم داسې راغلم

www.urdukutabkhanapk.blogspot.com

ځنګه چې وم هغسې یم تراوسه
ستا د یادونو دارو خورم تراوسه

خیالي تصویر دې په زړګي کې جوړ کړم
هسې پرې ځان مشغولوم تراوسه

ماته چې پل په پل ازغي خوروي
ګلان په هغه چا شیندم تراوسه

سره د پوهې په ځان نه پوهېږم
په تا د سر بازي ترم تراوسه

شپه لاړه تېره شوه سبا اوختو
د راتلو لارې دې څارم تراوسه

تا چې د قصده په دروغه کړي
هغه وعدې رښتیا ګڼم تراوسه

څومره ساده یم زۀ **اکمل** لېونے
چې ستا په سر شرطونه ږدم تراوسه

خبر دے که تا باندې زما خبرې ښې نه لګي
په ما بې ستا نه د بل چا خبرې ښې نه لګي
څوک چې د خلقو نه نفرت کړي مينه نه پېژني
په هغوي خود د مئينتيا خبرې ښې نه لګي
لکه ماشوم اوس بلد شوے د ژړا سره يم
راباندې ځکه د خندا خبرې ښې نه لګي
زۀ چې جانانه کله ستا د خولې خبرې ناورم
بيا مې په زړۀ د دې دنيا خبرې ښې نه لګي
زۀ د هغو خلقو خبرو ته غوږ څنګ ونيسم
چې پرې زما د لېونتيا خبرې ښې نه لګي
د پنجابي او د سيندهي نه ګيله څنګه وکړم
چې په پښتون د پښتونخوا خبرې ښې نه لګي
**اکمله**! زړونه اوس د کاڼو دي د غوښو نه دي
پرې د فرياد آه و ژړا خبرې ښې نه لګي

☙❧

اوبه یې تکې سپینې ښې خوږې رڼې رڼې دي
په غرونو کې زمونږه پیدا کړې خدائې چینې دي

(۱)

اوبه یې تکې سپینې خوند کې زیاتې له ګبینه
صاف په غورځنګونو رابهیږي د تنګینه
موسم د پشکال کې تماشه یې ده رنګینه
غمونه اندېښنې به دې بهر شي د زړګینه
د خدائې د قدرتونو لوئې نخښې نښانې دي
په غرونو کې زمونږه پیدا کړي خدائې چینې دي

(۲)

اباد چې پشکال وي نو په درز کې رابهیږي
د کلي ماشومان په مخه زغلي خوشحالیږي
د یو د بل د ضده په لامبلو نه مړیږي
ټوپونه وهي ډنډ ته یو د بله مخکښې کیږي
ملګرو څه عجبې تماشې او نندارې دي
په غرونو کې زمونږه پیدا کړي خدائې چینې دي

(۳)

کچه غونډې غرمه کې يا په وخت د مازيګر کښې
حيران به شې که خلقو ته دې اوکتل په غر کښې
ياران ټولي ټولي ورته روان وي په چکر کښې
خالص لکه ميلې چې لګېدلې وي اختر کښې
په غاړه د ډنډونو محفلونه د مزې دي
په غرونو کې زمونږه پيدا کړې خدائې چينې دي

(۴)

د کلي سره خوا کې ورومبې ډنډ د جينکو دے
دوېم بيا کُلپې ډنډ دے دغه لاد تماشو دے
درېم چرګانو ډنډ دے ورپسې بل د سړو دے
پنځم د ټولو لوې ډنډ مشهور په ګناوو دے
ګاټې دې هېره مه شه پرې اوبه چپې چپې دي
په غرونو کې زمونږه پيدا کړې خدائې چينې دي

(۵)

ګاټې باندې اوبه داسې په زور کې راځي ښکته
چې خلق قدرتي ورته رېبړي د هيبته
د سپينو پاغونډو پشان ليدے شي خوبصورته
په سر باندې يې لار د تلو راتلو شته دے اوچته

شور شه د ے د اوبو خو د درياب خوږې نغمې دي
په غرونو کې زمونږ پيدا کړې خدائې چينې دي

(۶)

نور هم واړه ډنډونه وريسې شته د ے بې شماره
خاص کړي دي لامبلو له سړو د ځان دپاره
پرده يې ترې تاو کړې وي د ګټو مزيداره
که چا له مېلمانه ياران دوستان راشي د باره
د بره سر يخ د لاندې سمې ځان ځان له ديرې دي
په غرونو کې زمونږه پيدا کړې خدائې چينې دي

(۷)

د بره سريخ د لاندې لوي واړه جمع بلا شي
پخېږي غوښې روژې خلق ټول په مشغولا شي
چرګان پکښې حلال شي لا يې ښه مزا پيدا شي
ورغومي پکښې هم وي مېلمانه چې د چا راشي
په سوري ورته ناست وي قدرتي ګټې پرتې دي
په غرونو کې زمونږه پيدا کړې خدائې چينې دي

(۸)

پخلي وريکښې کړي وي هر چا د خپلې خوښې
په سوري ورته ناست وي که څوک روژې خوري که غوښې

اوبه د ښبنو د پاره د چينو نه راوړي يخې
نيولي دي نېزو ډنډ د دې تولو چينو مخې
مثال يې چرته نشته دے لرې ورځې شپې دي
په غرونو کې زمونږه پيدا کړې خدائې چينې دي

(۹)

مثال يې چرته نشته دے پکار يې احترام دے
د سوات معلم جبه ده که بحرين دے که کالام دے
ښائسته د فضا ګټ که مازيګر دے که ماښام دے
هم داسې مرغزار کې زړۀ راښکونکے انتظام دے
دا ټول به ترې لوګے کړم زما غرونه که درې دي
په غرونو کې زمونږه پيدا کړې خدائې چينې دي

(۱۰)

منم چې په دنيا کې که بادشاه دے که فقير دے
تر غوږو رسيدلے د هر چا دغه تقرير دے
متل دے وائې خپل وطن هر چا باندې کشمير دے
اکمله! لپونيه خدائې د هر چا سبب ګير دے
دے صبر پرې پکار چې د چا څه قسم حصې دي
په غرونو کې زمونږه پيدا کړې خدائې چينې دي

# جنګونه مه کوئ

کښېنئ په قلاره پښتنو جنګونه مه کوئ
هېڅ به ترې جوړ نه کړئ لېونو جنګونه مه کوئ

(۱)

کښېنئ په قلاره جنګونو نه جوړېږي څه
هسې د شرونو فسادونو نه جوړېږي څه
خپلو کې د يو بل د قتلونو نه جوړېږي څه
دې د ځناورو د خويونو نه جوړېږي څه
بدي ښکاريږي نور لکه د سپو جنګونه مه کوئ
کښېنئ په قلاره پښتنو جنګونه مه کوئ

(۲)

څو پورې به خپلو کې يو بل باندې رانښتي يې
وينم چې د خلقو د نظره هم پرېوتي يې
ختم شوئ کم عقلو دا د چا په خوله تېروتي يې
چل د وتو نه درځي اوس ښه پکښې کېوتي يې
بس دے نور په پولو په پټو جنګونه مه کوئ
کښېنئ په قلاره پښتنو جنګونه مه کوئ

(۳)

ځان مو په تا وي ما وي لفظونو باندې ختم که
مال مو په تاڼو اوتحصیلونو باندې ختم که
ژوند مو څه بې ځایه په جېلونو باندې ختم که
تاسو خپل عزت په دې چلونو باندې ختم که
دا خو سرېتوب نه دے سړو جنګونه مه کوئ
کښېنئ په قلاره پښتنو جنګونه مه کوئ

(۴)

نن چې په خپل جهل کلک ولاړ يئ خطائي کوئ
دا خو مو د خپل راتلونکي نسل تبائي کوئ
تش شرونه نا ژوبلې مرګونه سېوائي کوئ
بيا چې لا په يو بل د دروغو ګوائي کوئ
ورک به شئ په ضد او په پښتو جنګونه مه کوئ
کښېنئ په قلاره پښتنو جنګونه مه کوئ

(۵)

تېر دې وي په هېر باقي وعده په صداقت اوکړئ
يو بل ته تر غاړه وزئ مينه صحبت اوکړئ
مشر له عزت په کشرانو مو شفقت اوکړئ
لمسې د چا مه اورئ په دې ټکي غيرت اوکړئ

کـور کـې پـه خبـرو د وړو جنګونـه مـه کـوئ
کښېنئ پـه قـلاره پښـتنو جنګونـه مـه کـوئ

(۲)

یـه خلقـو! دا څـۀ کـوئ خپـل ځـان پوهـه پـه پتـه کـړئ
لاسـو کـې راپورتـه کـړئ قلـم ټوپـک تـرې ښـکته کـړئ
ځـان بهـر د علـم پـه رڼـا د جهالتـه کـړئ
مـه ګرمـه وئ نـور خلـق ځانونـه ملامتـه کـړئ
خپلـو کـې پـه لمسـو د پـردو جنګونـه مـه کـوئ
کښېنئ پـه قـلاره پښـتنو جنګونـه مـه کـوئ

دا چې زړۀ لرمه وريت لکه تيکه
بار ويشتلے يم د سترګو په سيکه
په مرض د عاشقۍ چې څوک بيمار شي
همېشه به يې وي خوند د خولې پيکه
څه په چل د کمر سر له اشنا بوتلم
رقيبانو راله راکړله ديکه
ښکلي داسې ټول په مونږه زورور دي
لکه زور چې لري څنګه امريکه
چې په سترګو دې ښه نه لګي **اکمله**!
خامخا په داسې خلقو څه ليکه

ما باندې داسې کوډې کړې جانان
ملګرو هر څه رانه وړي جانان
مرګ ترې نه ښه دے داسې ژوند څه کوم
چې د رقیب په خوله مې شړي جانان
لاس یې زما مخکښې په بل واچول
ورغلے زخم مې راسپړي جانان
پوره مې نه شو ارمانونه د زړۀ
دغسې پاتې کړه نیمګړي جانان
وایم دې خپل ځان سره څه چل اوکړم
ډېر سترے کړے یم زړۀ سترې جانان
لکه د خوړ د غونډو کاڼو په شان
د برغو لاسو نه مې رغړي جانان
دا په خوروا شو سبو چا عادت که
زما د لونګ او د سرګړي جانان
**اکمله**! نن یې راته نیت ښه نه دے
چې مې د لاسو پښو نه تړي جانان

په ارمان لکه د مچ منګلې مروړه
تاته چا وې چې د خلقو ګوتې تروړه
اوس د خپلې بربادۍ خوبونه وینه
د بالښت په ځائې دې سر کېږده په پروړه
څوک په وس سره تاوان ته غاړه نږدي
نو ے هر سړي ته ښه ښکاري د زوړه
سره دواړه په یو شان لازم ملزوم دي
سوړ دتوده پېدا کېږي تد د سوړه
عاقبت د ډېرې لوږې ن هلاک شي
چې بې خدایه وږ ے طمع کړي د موړه
یار مې پېتې د غمونو راته پرېښول
خوشحالي یې په بدل کې رانه یوړه
ښکلو هېڅکله هم ځان ملامت نه که
خو اکثر په بل وراړۍ خپله غوړه
وخت چې ورکړله په مخ چا له تتوړه
اے **اکمله**! هغه تل ګرځي ناجوړه